# د کتاب پېژندنه

د کتاب نوم : د فقهي کتابونو له پاڼو څخه (۱)

لیکوال : مفتي کفایت الله وردګ

د کمپیوټر چارې : محمد نذیر (ذبیح) 03138182431

د چاپ وار : لمړی

د چاپ شمېره : ۱۰۰۰ ټوکه


ZamZam Publication Company



زم زم خپرندویه ټولنه

Zamzam_publication@yahoo.com

00923009808094
00923009101098

Unit R 7 Alwajid Plaza, Faisalcolony Chawk, Dalazak road
Peshawar, KPK, Pakistan




# د فقهي کتابونو له پانو څخه

په زړونو کې د اسلامي جذبې لرونکو څو ورونو زمونږ ددې لپاره ملا تړلې ده چې تر پورتني نوم لاندې د کتابونو یوه سلسله روانه وساتو پدې سلسله کې مونږ کوښښ کوو چې په ساده او روانه پښتو کې د یني ضروري مسئلې را غونډې او خپلو پښتنو ورونو ته یې وړاندې کړو سره ددې چې پدې موضوع کې کتابونه له وړاندې نه هم ډېر دي هرچا د خپل وس مطابق کوښښ کړی دی مونږ د هغوی د ټولو کوښښونو قدر کوو او د الله ① نه ورته اجر عظیم غواړو لکن په زمزم کې شریکو ملګرو چې ددې سلسلې لپاره کومه نقشه تیاره کړېده هغه تر بهتر څخه هم بهترینه ده پدې سلسله کې به داسې مسئلې را جمع کیږي چې په اسلامي معلوماتو کې څوک د صفر نه واخلي د مهارت تر حد پورې یې ورسوي او ددې سلسلې به له ډېرو صفاتو څخه یو صفت دا وي چې که څوک په ځان ددې د مطالعې التزام وکوي نو بغیر د استاذ نه به په کور کې دی تربنه داسې مسئلې زده کولی شي لکه ژوندی استاذ چې دده سره په کور کې وي .

پدې کتابونو کې :

تاسې ته ستاسې په ژبه دیني مسائل وړاندې کول .

لتاسې سره د سمې لارې په پیدا کولو کې مرسته کول .

تاسې ته د اسلام مطالعې لپاره د ښو او فایده منو موادو په لاس درکول .

له لویو کتابونو څخه لویې خبرې تاسې ته ستاسې د اسانتیا لپاره د وړو رسالو په شکل کې درکول .

دیني ضروري مسئلې چې کېدای شي اوس ستاسې هېرې شوې وي بېرته تاسې ته در په زړه کول .

مقدس دین ته په ښکلې پښتو ژبه خدمت کول .

او داسې نور مطلبونه خوندي دي .

پدې سلسله کې مونږ کوښښ کوو چې یوه خبره هم د خپل دماغ نه پکې ځای نه کړو د کتاب په آخر کې به مونږ د هغه فتاواوو او کتابونو لست خامخا ستاسې خدمت ته وړاندې کوو چې مونږ ترېنه اخذ کوو او په دې رساله کې به ټولې خبرې د حضرت امام ابي حنیفه رحمه الله د مذهب او مسلک مطابق وي .

که پدې اړه ستاسې څه ډول اعتراض، سوال، نیوکه، نکته، نظریه او یا مشوره وي نو ددې سلسلې چلونکي به یې لتاسې څخه نه یوازې د کور ودانې په ویلو سره په ورین تندي واوري بلکه د بیا چاپ کولو په وخت به ستاسې مشوره د خپلو کتابونو ښائست وګرځوي

لله الحمد داده ستاسې تر لاسونو پورې ددې مبارکې لړۍ اوله کړۍ در ورسېده او پدې کړۍ کې مونږ د اهل السنة و الجماعة د عقیدې په اړه د یو څو ټکو نه وروسته په طهارت باندې شروع کړېده امید دی چې ستاسې لپاره به د ډېرې فایدې وړ وګرځي .

مننه

د زمزم خپرندویه ټولنې اداره

E-mail: zamzam_publication@yahoo.com
Fb.com/zamzam07



# اسلام

اسماني مقدس دين دى چې الله ﷻ خلکو ته د لار ښونې لپاره را لېږلى دى او اسلام په لغت کې د سلامتيا څخه اخستل شوى دى او يا له تسليم څخه اخستل شوې دى پدې معنى چې څوک مسلمان وي نو هغه به په سلامتيا کې وي او يا به د ژوند په ټولو برخو کې د الله ﷻ حکمونو او امرونو ته تسليم وي ، اسلام هغه دين دى چې په دده سره ټول پخواني دينونه مسخ شول او د رسول الله ﷺ په راتلو سره نوره د پيغمبرانو د راتلو لړۍ پاى ته ورسېده او دا اسلام دين دى چې الله ﷻ د ټول عالم لپاره د انسانانو او پيريانو لپاره را ولېږلو د اسلام مقدس دين خپلو پيروانو ته د الله ﷻ په وجود او وحدانيت، د ټولو انبياوو هغه چې په قران کريم کې يې ذکر راغلى دى او کنه په رسالت او حقانيت د څلورو اسماني کتابونو(تورات، انجيل، زبور، قران کريم) او صحيفو په نزول ، په ملائکو او د قيامت په ورځ باندې د ايمان راوړلو حکم کوي د اسلام د دين د ټولو قوانينولمړى بنياد زمکې ته په را لېږل شويو کتابونو کې وروستنى کتاب قران کريم او دوهم بنياد يې د رسول الله ﷺ مبارک احاديث

دي او بيا ورپسې د پوره تفصيل لپاره علم فقه ده .

په دنيا کې تر ټولو وړاندې ملک اندونيسيا دی چې تر ټولو نه زيات مسلمانان لري او د ټولې نړۍ د مسلمانانو ديارلس په سلو کې مسلمانان همدلته دي پاتې ٢٥ ٪ مسلمانان په جنوبي آسيا (افغانستان، ايران، پاکستان، بنګله ديش، بوتان، سريلانکا، نيپال، ملديف، هند) کې ، ٢٠٪ په شرق اوسط (بحرين، کويت، عمان، قطر، ترکيه، سعودي، امارات، يمن، فلسطين، عراق، اسرائيل، اردن، لبنان، سوريه، مصر ) کې 22٪ په مينځنۍ آسيا کې ، ٤٪ په سلو کې په نوره آسيا کې 15% په ټوله افريقا کې او پاتې په نوره دنيا کې لکه چين او داسې نورو ساحو کې خپاره دي چې هلته ورته د نور نفوس په نسبت د اقليتونو په نظر کتل کيږي په اوسني عصر کې په نړۍ کې د مسلمانانو شمېره ويل کيږي چې 1.75 مليارده ده چې د دنيا د ټول نفوس 23% برخه تشکيلوي او همدارنګه د مسلمانانو لويه شمېره په امريکا او آروپايي ملکونو کې خپره شوېده چې د نورو ملکونو څخه د مهاجرينو په ډول هلته تللي دي او بيا هماغلته ميشت شوي دي او په اوسني وخت کې اګر چې ويل کيږي چې د عيسايانو شمېره په دنيا کې له مسلمانانو څخه

زياته ده خو په ټولو دينونو کې زيات
خپريدونکى دين بيا هم اسلام دى .

# اهل السنة والجماعة

په مسلمانانو کې تر ټولو نورو ډلو څخه لویه ډله ده چې د مسلمانانو 90% نوي فیصده برخه تشکیلوي په فقهي مسائلو کې د څلورو مذهبونو څخه د یو متابعت کوي او په عقیدوي مسائلو کې د ټولو اتفاق دی د ټولو صحابه وو په اړه باندې د عدالت عقیده لري په شرعي مسائلو کې په څلورو مذهبونو کې مونږ د حضرت امام ابي حنیفه رحمه الله په مذهب یو .

هغه مذهبونه په لاندې ډول دي .

١. حنفي مذهب امام یې حضرت امام ابو حنیفه رحمه الله دی .

٢. مالکي مذهب امام یې حضرت مالک بن انس رحمه الله دی .

٣. شافعي مذهب امام یې حضرت شافعي رحمه الله تعالی دی .

٤. حنبلي مذهب امام یې حضرت احمد بن حنبل رحمه الله دی.

دا ټول مذهبونه یو ډول د فقهي مسائلو مدرسې دي په اصولو کې ټول سره متفق او په فروعو کې اختلاف لري لکه مخکې چې تېر شول په عقیدوي مسائلو کې دوی ټول متفق دي او د دوی عقیده

صحيح اسلامي عقيده ده چې ځينې ټکو ته يې ستاسې پام را ګرځوم .

# د ايمان ارکان

د اهل السنة و الجماعة په مذهب باندې ايمان هغه وخت پوره کيږي چې په هغه شيانو باندې ايمان راوړل شي چې په لاندې د ايمان مفصل په جملو کې ذکر کړل شوي دي .

**اٰمَنتُ بِاللّٰهِ وَ مَلٰئِكَتِهِ وَ كُتُبِهِ وَ رَسُلِهِ وَ لِيَومِ الاٰخِرِ وَ القَدرِ خَيرِهِ وَ شَرِّهِ مِنَ اللّٰهِ تَعَالٰى وَالبَعثِ بَعدَالمَوتِ**

او ددې شيانو ذکر په لاندې آيت او حديث کې راغلی دی :

سورة بقرة آية ٢٨٥

**آمَنَ الرَّسُولُ بِمَا أُنزِلَ إِلَيْهِ مِن رَّبِّهِ وَالْمُؤْمِنُونَ كُلٌّ آمَنَ بِاللّٰهِ وَمَلآئِكَتِهِ وَكُتُبِهِ وَرُسُلِهِ**

ترجمه : ايمان راوړی دی رسول په هغه څه باندې چې ده ته د دده د رب له لوري نه نازل شوي دي او ټولو مومنانو ايمان راوړی دی په الله ① ، دهغه په ملائکو، د هغه په نازل شويو کتابونو، او دهغه په رالېږل شويو رسولانو باندې .

او کله چې د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وشوه چې ایمان څه شی دی؟

ده صلی الله علیه وسلم وفرمایل : **أن تؤمن بالله وملائكته وكتبه ورسله واليوم الآخر ,وتؤمن بالقدر خيره وشره** . رواه مسلم والبخاري

ترجمه: ایمان دادی چې ته ایمان راوړې په الله ① ، د هغه په ملائکو ، د هغه په کتابونو ، د هغه په رسولانو ، د آخرت په ورځ او ته ایمان راوړې په تقدیر چې خیر او شر یې د الله ① له لوري څخه دي .

په الله باندې ایمان

په الله ① باندې ایمان راوړل چې هغه ذات دی کوم چې په ریښتیني ډول سره د ټولو نېکو صفاتو مستحق دی دده نه بغیر لائق د عبادت نشته همدا یو ذات دی بې نیازه دی او یو دی نه ورته مثل شته نه یې اولاد شته او نه د چا اولاد دی نه ورته وزیر او نه ورته مشیر شته نه ویده کیږي نه خوراک کوي نه ستړی کیږي او د ټولو انساني او حیواني صفاتو څخه پاک دی آوري لکن زمونږ د آوریدلو په څېر نه لیدل کوي لکن زمونږ د لیدلو په څېر نه ، نه چاته احتیاج دی او نه یې چا ته ضرورت شته د ټولو انسانانو دېته ضرورت دی چې د هغه عبادت وکوي دهغه هېچا ته د

عبادت ضرورت نشته انسان دېته اړ دي چې دده ① ثناء ووايي او الله ① د هېچا ثناء ته اړ نه دی نه يې اول شته نه يې آخر ، په هرڅه باندې خبر دی په هرڅه باندې پوهيږي قادر مطلق دی د ټولو شيانو خالق دی .

الله ① به په هغه صفاتو سره يادول کيږي چې کوم په قران کريم راغلي دي د هغې نه علاوه به نور صفات ورته نه کول کيږي د مثال په توګه لکه الله ① د هرې بېمارۍ علاج کولی شي نو بيا هم ورته طبيب ويل نا روا دي ځکه دا په هغه صفاتو کې نشته چې الله ① مونږ ته په قران کريم کې او يا رسول الله ﷺ په حديثو کې را ښودلي دي .

## په ملائکو باندې ايمان:

په ملائکو د ايمان راوړلو مطلب دادی چې انسان ټينګه عقيده ولري پدې چې الله ① ملائکې له نور څخه پيدا کړي دي او ملائکې يو موجود مخلوق دی هر وخت د الله ① متابعت کوي دوی کله هم نا فرماني نه کوي او کومې وظيفې چې دوی ته سپارل شوي دي هماغه کوي .

په اجمالي توګه په ټولو ملائکو ايمان راوړل فرض دي او څومره يې چې زمونږ د دين په سرچينو کې تفصيل راغلی دی دهغې منل هم فرض دي لکه نومونه يې صفات يې او داسې نور .

## په کتابونو باندې ایمان

په کتابونو د ایمان مطلب دادی چې مسلمان باید عقیده ولري چې الله ① قران کریم او نور اسماني کتابونه د خلکو د هدایت لپاره نازل کړي دي الله ① په قران کریم کې فرمایي :

سورة النساء آية ١٦٣

(إِنَّا أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ كَمَا أَوْحَيْنَا إِلَى نُوحٍ وَالنَّبِيِّينَ مِن بَعْدِهِ وَأَوْحَيْنَا إِلَى إِبْرَاهِيمَ وَإِسْمَاعِيلَ وَإِسْحَاقَ وَيَعْقُوبَ وَالأَسْبَاطِ وَعِيسَى وَأَيُّوبَ وَيُونُسَ وَهَارُونَ وَسُلَيْمَانَ وَآتَيْنَا دَاوُودَ زَبُورًا)

ترجمه : بېشکه مونږ تاته وحی کړې ده لکه نوح او هغه نبیانو ته مو چې وحی کړېده چې د هغه نه وروسته دي او مونږ وحی وکوله ابراهیم اسماعیل اسحاق یعقوب او دهغوی اولادې ته عیسی ایوب یونس هارون سلیمان ته او داود ته مو زبور ورکړو صلوات الله علیهم اجمعین .

نو زمونږ د اهل السنة و الجماعة عقیده ده چې الله ① څلور اسماني کتابونه نازل کړي دي .

۱. تورات

په حضرت موسی علیه السلام باندې نازل شوی کتاب دی الله ① یې په اړه په قرآن کریم کې فرمایي :

سورة مائدة آیة ٤٤

(إِنَّا أَنزَلْنَا التَّوْرَاةَ فِيهَا هُدًى وَنُورٌ يَحْكُمُ بِهَا النَّبِيُّونَ الَّذِينَ أَسْلَمُوا لِلَّذِينَ هَادُوا وَالرَّبَّانِيُّونَ وَالأَحْبَارُ بِمَا اسْتُحْفِظُوا مِنْ كِتَابِ اللَّهِ)

ترجمه :

تورات اوس هم په دنیا کې شته سره ددې چې دا ټول هغه تورات نه دی چې کوم الله ① نازل کړی وو لکن د هماغه تورات په نوم پاتې دی معلومه نه ده چې څو فیصده به هغه اصلي تورات پکې وي چې په حضرت موسی علیه السلام باندې نازل شوی خو دا موجوده تورات په پنځو برخو مشتمل دی چې یوې برخې ته یې سفر وایي .

۱. سفر التکوین : پدې کې د عالم د پیدائښت د انسان د خلقت د نوح علیه السلام د طوفان او د یوسف علیه السلام تر مرګه پورې خبرې پکې دي .

۲. سفر الخروج : پدې برخه کې په مصر کې د بني اسرائیلو د پخواني ژوند او د بني اسرائیلو د حضرت موسی ⌛ سره کنعان ته د وتلو په اړه خبرې کیږي .

۳. سفر الاوابين : پدې برخه کې د طهارت ، نجاست ، نذرونو ، حلالو په اړه خبرې شوې دي .

٤. سفر العدد : پدې برخه کې د يعقوب عليه السلام د اولادې په اړه او د بني اسرائيلو د قبيلو په اړه خبرې شوې دي .

٥. سفر التثنية : پدې کې عبادات ، احکام ، سياست ، اجتماع ، اقتصاد څېړل شوي دي او د حضرت موسی ⌛ پکې درى خطبې دي .

## ۲. الانجيل

دا هغه کتاب دی چې الله ① په عيسی ⌛ باندې نازل کړی وو د تورات تائيد وو او په اکثرو شرعي امورو کې د هغه سره په يو ډول وو او پدې کې زيات تحريف وشو او اوس يې په دنيا کې مشهورې څلور ډوله نسخې موجودې دي .

۱. انجيل يوحنا

۲. انجيل مرقُس

۳. انجيل متی

٤. انجيل لُوقا

## ۳. الزبور

په حضرت داود عليه السلام باندې نازل شوی وو په قران کريم کې په سورة النساء کې ياد کړل

شوی دی چې الله ① فرمايي مونږ داود ته زبور ورکړی وو .

## ٤. القران الكريم

د الله ① وروستنی نازل شوی کتاب دی ددېنه وروسته بل کتاب نه راځي او تر قيامته پورې به په هغه شان وي په کوم ډول چې راغلی دی څوک هم پکې تغير او تبديل نشي راوستلی الله ① يې تر قيامت پورې د ساتنې وعده کړې ده .

په ټولو اسماني کتابونو ايمان راوړل فرض دي او دا چې قران کريم تر ټولو غوره او د مخکنيو ټولو ناسخ دی او د قران کريم د راتلو نه وروسته په نورو باندې عمل کول نه دي روا .

## په انبياء عليهم السلام باندې ايمان

ددې دا مطلب دی چې عقيده وکول شي الله ① هغه پيغمبران چې په قران کې ذکر دي او دهغوی نه بغير نور هم ډېر پيغمبران دنيا ته د خلکو د هدايت لپاره رالېږلي دي او د هغوی د جملې نه الله ① پنځه ويشت په قران کريم کې ذکر کړي دي آدم ،نوح ،ادريس، صالح، إبراهيم ،هود، لوط، يونس، إسماعيل، اسحاق، يعقوب، يوسف، أيوب، شعيب، موسى ، هارون، اليسع، ذو الكفل، داوود، زكريا، سليمان، إلياس، يحيى، عيسى ،محمد صلوات الله وسلامه عليهم أجمعين.

## د قيامت په ورځ ايمان

يعني ټينګه عقيده درلودل چې ټول هغه شيان چې الله ① او د هغه رسول ﷺ مونږ ته ترينه خبر راکړی دی چې د مرګ نه وروسته به کيږي د قبرنعمتونه او عذابونه ، د مرګ نه وروسته را پاڅېدل، د عملنامو تقسيم کېدل ، حساب کېدل ، د عملونو تول کېدل ، حوض کوثر ، پل صراط ، شفاعت ، جنت او دوزخ ا و هغه څه چې په جنت او دوزخ کې الله ① د جنتيانو او دوزخيانو لپاره تيار کړي دي دا ټول حق دي .

د قيامت ورځ په قران كريم كې په ٢٤ نومونو سره ياده كړل شويده .

- يوم القيامة: لا أقسم بيوم القيامة
- اليوم الآخر : إنما يعمر مساجد الله من آمن بالله واليوم الآخر
- الآخرة: ولقد اصطفيناه في الدنيا وإنه في الآخرة لمن الصالحين
- الدار الآخرة: تلك الدار الآخرة نجعلها للذين لا يريدون علوا في الأرض ولا فسادا
- الساعة ،ذكر القرآن " : إن الساعة آتية أكاد أخفيها
- يوم البعث: وقال الذين أوتوا العلم والإيمان لقد لبثتم في كتاب الله إلى يوم البعث
- يوم الخروج: يوم يسمعون الصيحة بالحق ذلك يوم الخروج
- القارعة: كذبت ثمود وعاد بالقارعة
- يوم الفصل: هذا يوم الفصل الذي كنتم به تكذبون
- يوم الدين: مالك يوم الدين
- الصاخّة: فإذا جاءت الصاخة
- الطامّة: فإذا جاءت الطامة الكبرى
- يوم الحسرة: وأنذرهم يوم الحسرة
- الغاشية: هل أتاك حديث الغاشية
- يوم الخلود: ادخلوها بسلام ذلك يوم الخلود

- الواقعة: إذا وقعت الواقعة
- يوم الحساب: إني عذت بربي وربكم من كل متكبر لا يؤمن بيوم الحساب
- يوم الوعيد: ونفخ في الصور ذلك يوم الوعيد
- يوم الآزفة: وأنذرهم يوم الآزفة
- يوم الجمع: وتنذر يوم الجمع لا ريب فيه
- الحاقة: الحاقة ما الحاقة
- يوم التناد: " :ويا قوم إني أخاف عليكم يوم التناد
- يوم التلاق: لينذر يوم التلاق
- يوم التغابن: يوم يجمعكم ليوم الجمع ذلك يوم التغابن

د قيامت په ورځ ايمان راوړل فرض دي او هغه څه چې په قران کريم کې د هغه ورځې په اړه راغلي دي هغه ټول حق دي .

په قبر کې عذاب او راحت ، قيامت ، جنت ، دوزخ، شفاعت ، د عملونو حساب ، تله او پل صراط دا ټول حق دي.

په تقدير باندې ايمان

پـدې عقـيـده كـول چې الله ① پـيـدا كـونـكى دخـيـر او د شر دى او پـه دنـيـا كې چې څـومـره خـيـر او شر دي دا د الله ① پـه تـقـديـر سره رسيږي .



# د اسلام ارکان

د اسلام ارکان هغه پنځه شيان دي چې د حضرت عمر ❽ په حديث کې دي هغه مبارک ❽ فرمايي ما د رسول الله ☸ نه واورېدل هغه فرمايل :

اسلام په پنځو شيانو ولاړ دی .

١. لا إله إلا الله وأن محمدا رسول الله ګواهي ورکول .

٢. مونځ کول .

٣. زکاة ورکول .

٤. د رمضان روژه نيول .

٥. حج کول .

## ١. لا إله إلا الله وأن محمدا رسول الله ګواهي ورکول .

دا هغه شی دې چې په همدې سره انسان په اسلام کې داخلیږي او انسان هغه وخت مسلمان شي چې کله په ژبه همدا مبارکه کلمه ووايي او په همدې وخت کې په زړه کې هم محسوس کړي چې د الله ① نه بغيرد عبادت وړ نشته او محمد ☸ چې په ټولو نېکو صفاتو باندې ښائسته کړل شوی وو د الله ① له لوري نه د خلکو د هدايت لپاره مبعوث

شوی وو او دده ﷺ شریعت د ټولو هغه دینونو ناسخ دی چې ددې دین څخه وړاندې وو .

د دین اصول ټول د رسول الله ﷺ تر وفات پورې پوره شوي دي اوس هېڅوک هم داسې څه نوي شی نشي را پیدا کولی چې دا هم له دین څخه دي .

## ۲. مونځ کول .

یو عبادت دی چې الله ① په انسان باندې فرض کړی دی په اسلام کې لوړه مرتبه لري او په قیامت کې به د انسان سره اول د مانځه حساب کیږي چې څومره یې کړي دي او څومره یې ضائع کړي دي او هغه چې کړي یې دې په څنګه کیفیت سره یې کړي دي که د بنده د حساب دا برخه سمه وه پاتې حساب به یې ټول ښه وي او که خدای مه کړه دا برخه یې خرابه وه په راتلونکي حساب کې یې هم خیر نه ښکاره کیږي او د مسلمان او کفار په مینځ کې همدا لوی فرق پاتې دی لکه د حضرت جابر ❽ په حدیث کې چې نقل شوي رسول الله ﷺ فرمایل : د یو سړي او د شرک او کفر په مینځ کې صرف د مانځه پرېښودل دي (یعنې چې انسان مونځ پرېږدي نو کفر او شرک ده ته ورسیږي) (رواه مسلم)

په ۲٤ ساعتونو کې الله ① په انسان باندې پنځه مونځونه سحر ، ماسپښین، مازیګر، ماښام او ماسخوتن فرض کړي دي احکام شروط او ارکان یې را روان دي انشاء الله

## ۳. زکاة ورکول .

مالي عبادت دی الله ① فرض کړی دی په انسانانو باندې ترڅو دوی وربانديې پاک کړي د دوی نفسونه ورسره پاک کړي د بدو خویونو څخه لکه بخل او داسې نور او د انسانانو عملنامې ددې په برکت ورته د خطاګانو څخه پاکې کړي الله ① په سورة توبه آیة ۱۰۳ کې رسول الله ☸ ته فرمایي : او واخله د دوی د مالونو څخه صدقه ترڅو دوی پاک شي .

د مال زکات په کال کې صرف دوه نیم فیصده یا په بل عبارت څلویښتمه برخه ورکول دي انشاء الله تفصیل به یې په همدې سلسله کې راشي .

## ٤. د رمضان روژه نیول .

د رمضان په مبارکه میاشت کې روژه نیول د اسلام له ارکانو څخه دي دا هغه میاشت وي چې د ثوابونو پیدا کول پکې ډیر اسانه وي الله ① ته پدې میاشت کې ټول مسلمانان په خپلو عبادتونو ډیر ځان ور نږدې کولی شي انشاء الله پدې سلسله کې به یې احکام مسائل او تفصیلي خبرې راشي .

## ٥. حج کول .

په ژوند کې یو ځل د مسجد حرام زیارت او د هغه سره نور د حج کارونه کول په هر عاقل او بالغ باندې چې د ورتلو وس یې وي فرض دي.

د اسلام په ارکانو کې تر کلمې وروسته په دوهمه مرتبه کې مونځ کول دي د مانځه لپاره د طهارت او پاکي ضرورت وي ترڅو چې بدن او جامې پاکې نشي نو مونځ نه کیږي نو د طهارت مسئلې د مانځه تر مسائلو وړاندې ستاسې مخې ته ږدم .

# طهارت

د اسلام دين د نظافت او پاکي دين دی او پدې مبارک دين سره الله ① د مسلمانانو زړونه او بدنونه پاکوي او پدې سره اخلاق له ټولو بدو کارونو څخه پاکوي او پدې پاک دين سره د انسان باطن له شرک او ګناه څخه پاکيږي او ظاهر له هر ډول نجاست څخه پاکيږي .

او دا پاک دين هر وخت له خپلو پيروانو څخه پاکي غواړي او دا پاکې په د رى ډوله ده .

د باطن پاکي : پدې پاکي کې اسلام له انسان څخه غواړي چې خپل باطن له هر ډول شرک او ګناهونو څخه پاک کړي دا هغه څه دي چې الله ① فرمايي ما ټول پيغمبران د همدې مقصد د ښه پوره کولو لپاره را ليږلې دي الله ① فرمايي :

سورة النحل آية ٣٦

**(وَلَقَدْ بَعَثْنَا فِي كُلِّ أُمَّةٍ رَّسُولاً أَنِ اعْبُدُوا اللَّهَ وَاجْتَنِبُوا الطَّاغُوتَ)**

ترجمه : او په تحقيق سره مونږ په هر امت کې رسول ليږلى دى چې دوى ته ووايي تاسې د ال ① له عبادت وکوئ او له سر کشه شيطان څخه ځان وساتئ.

دوهم ډول پاکي : خپل ځان او جامي له ظاهري نجاستونو څخه پاکول دي ددې ډول پاکي په اړه

الله ① په هغه آیتونو کې چې اول په رسول الله ﷺ
نازل شول و فرمایل :

سورة مدثر آیة ٤

(وَثِيَابَكَ فَطَهِّرْ )

ترجمه : او خپلې جامې دې پاکې کړه .

دریم ډول پاکي : دا هم باطني پاکي ده چې انسان له هر ډول بې اودسي څخه ځان پاک کړي .

د همدې پاکیو د په ځای کولو امر مونږ ته اسلام کوي او هغه کسان چې په ښه توګه ځان پاکوي الله ① هغه کسان خوښوي په سورت توبه آیة ۱۰۸ کې الله ① فرمایي :

(فِيهِ رِجَالٌ يُحِبُّونَ أَن يَتَطَهَّرُوا وَاللَّهُ يُحِبُّ الْمُطَّهِّرِينَ)

ترجمه : بېشکه پدې جومات (قباء) کې داسې خلک دي چې هغوی غواړي چې ځان ښه پاک کړي الله ① هغه کسان خوښوي چې ځان ښه پاکوي.

دپاکي او د پاکي د مسائلو په اړه یو څو مهمو مسئلو ته چې هر نر او ښځې ته یې زده کول ضروري دي ستاسې پام را ګرځوم .

## فقهي اصطلاحات

کله چې د فقه په کتابونو کې په کومه خبره باندې حکم کيږي د هغې لپاره څه اصطلاحات کارول کيږي :

## ۱. فرض

دا هغه حکم دی چې په قطعي دليل چې هيڅ شک او شبه پکې نه وي ثابت شوی وي او قطعي دليل درې شيان وي .

۱. هغه آيت چې په معنی کې يې د امامانو او سلفو اختلاف نه وي .

۲. حديث متواتر هغه حديث چې دومره کسانو يې روايت کړی وي چې د دومره کسانو په درواغو سره اتفاق کول عقلاً ممکن نه وي .

۳. اجماع .

د فرضو حکم .

که څوک يې له فرضيت نه انکار وکوي کافر کيږي او بيغير د شرعي عذر نه يې پرېښودونکی فاسق ګڼل کيږي او ګناهکار کيږي الله ① ورته د عذاب نه وېره ورکړې ده او په هرعبادت کې چې فرض پاتې شي هغه عبادت نه کيږي بيا يې کول فرض دي.

فرض په دوه ډوله دي

۱. فرض عين

هغه فرض دي چې هر مسلمان د هغه په کولو باندې مامور شوی وي او په هر چا باندې بېل بېل ددې کول فرض وي لکه مونځ، روژه، حج، زکات او داسې نور ....

۲. فرض کفایه

دا هغه فرض دي چې یو یا دوه کسان یې وکوي نو د نورو خلکو غاړه ورسره خلاصیږي او که یې هېڅوک ونه کوي نو ټول ورسره ګنهکار کیږي لکه د جنازې مونځ .

۲. واجب

دا هغه حکم وي چې په داسې دلیل سره ثابت شوی وي چې په هغه کې یو ډول شبه وي.

الف. هغه آیات چې په معنی کې یې بل احتمال وي.

ب. هغه حدیث چې د راویانو تعداد یې د حدیث متواتر اندازې ته نه وي رسېدلی.

ج. د اهل اجتهاد قیاس.

د واجبو حکم

د واجبو په نه کولو سره انسان ګنهګار کیږي او که د وجوب نه یې څوک انکار وکوي نو نه کافر کیږي که په مانځه کې واجب پاتې شي سجده سهوه یې پر ځای کېدلی شي او که سجده سهوه هم ونه کوي د مانځه بیا له سره کول واجب وي.

واجب هم په دوه ډوله دي.

۱. واجب عین هغه واجب دي چې په هر مسلمان باندې واجب وي او له هر چا څخه غوښتل کیږي چې هغه وکوي لکه د اخترونو مونځونه.

۲. واجب کفایي هغه وي چې ځینې مسلمانان یې وکوي د ځینو غاړه ورسره خلاصیږي او که یې هېڅوک ونه کوي ټول ورسره ګناهکارکیږي لکه ددین تبلیغ.

نکته: په فقهي مسائلو کې کله کله واجب یادیږي او مراد ترینه فرض وي.

### ٣. سنت

دا هغه عمل وي چې رسول الله ﷺ او یا صحابه کرامو ﷺ کړی وي او یا یې په کولو باندې حکم کړی وي .

سنت په دوه ډوله دي .

١. سنت مؤکد

دا هغه سنت وي چې رسول الله ﷺ یې په کولو باندې د ټینګار سره امر کړی وي او یا رسول الله ﷺ هر وخت کړی وي بغیر د عذر نه یې نه وي پریښې

ددې سنتو پریښودل ګناه ده .

٢. سنت غیر مؤکد

دا هغه عمل وي چې رسول الله ﷺ اکثر کړی وي او کله کله یې پریښی هم وي ددې ډول عمل په نه کولو کې ګناه نه وي لکن په کولو کې یې تر مستحب څخه زیات ثواب وي .

په بل تقسیم سنت بیا په دوه ډوله دي .

١. سنت عین

هغه سنت دي چې د هرانسان لپاره یې کول بیل بیل سنت وي لکه عام سنت اعمال .

٣. سنت كفاية

هغه سنت دي چې ځينې يې اداء كړي د ځينې نورو غاړه هم ورسره خلاصه شي او كه هېڅوك يې ونه كوي نوټول ګنهګار وي لكه د روژې په لسو آخري ورځو كې اعتكاف

## ٤. مستحب / نفل

دا هغه عمل وي چې رسول الله ﷺ يې په اړه حكم كړى وي او يا يې كله په خپله كړى وي .

ددې عمل په كولو كې ثواب وي او په نه كولو كې يې هېڅ ګناه نشته او كه څوك ترېنه انكار وكوي نو نه كافر كيږي او نه ورته فاسق ويل كېدلى شي .

لكن كونكى يې د اضافي ثواب مستحق وي .

## ٥. مباح

هغه عمل وي چې كول يې روا وي لكن په كولو او نه كولو كې يې هېڅ ډول ثواب او ګناه نه وي .

## ٦. حرام

هغه عمل وي چې حرمت يې په قطعي دليدل سره ثابت شوى وي چې هېڅ ډول شك او شبه پكې نه وي

لکه د درواغو ګواهي ورکول، شراب څښل، سود او رشوت اخستل ، زنا کول او داسې نور .

د حرامو کونکی فاسق او د عذاب لائق وي او که څوک يې له حرمت نه انکار وکوي او حلال يې وګڼي کافر کيږي .

## ۷. مکروه

مکروه په دوه ډوله دي .

۱. مکروه تحريمي

هغه عمل دی چې په داسې دليل سره ترې منع شوي وي چې په هغه کې له کومه اړخه څه شبه وي .

که څوک يې له حرمت نه انکار وکوي نه کافر کيږي او که بغيرد شرعي عذر نه يې څوک وکوي ګنهګار کيږي .

۲. مکروه تنزيهي

دا هغه عمل وي چې په شريعت کې نا مناسب ګڼل شوی وي ددې کار نه کول غوره خبره وي او که څوک يې وکوي هم ګناه وربانديې نشته لکن دپاکي نه لرې ده .

په عادي حالتونو کې چې مونږ د پاکي کول وغواړو نو په اوبو سره يې کوو او د اوبو متعلق يو څو حکمونه او مسئلې په لاندې ډول ستاسې خدمت ته ډالۍ کوم .

# اوبه

په عامه توګه اوبه په پنځه ډوله دي

۱. هغه اوبه چې هم پاکې وي او هم بلا کراهیته پاکول کولی شي لکه روانې اوبه د کوهي اوبه او داسې نور تفصیل یې را روان دی .

۲. دوهم هغه اوبه دي چې پاکې دي او پاکول هم کولی شي لکن مکروه دي په دا هغه اوبه دي چې کورني حیوان تریـنه څښلي وي لکن کورنی پېشو ، په کوڅو کې ګرځېدونکې چرګه .

۳. دریم ډول هغه اوبه دي چې پاکې وي لکن پاکول نشي کولی یعني که د جامې سره ولګیږي مونځ ورسره کیږي لکن پدې سره اودس نه کیږي دا هغه اوبه دي چې د اوداسه لپاره استعمال شوې وي.

٤. څلرم هغه اوبه دي چې شک وي پکې دا هغه اوبه دي چې خره او یا قچر ترې څښلې وي ددې اوبو په پاکوالي کې شک نشته شک یې په دې کې دی چې پاکي کولی شي او کنه .

٥. پنځم ډول هغه اوبه دي چې نجسې وي پاکي وربانـدې نه کیږي او که په جامه یا په ځان ولګیږي مونځ هم ورسره نه کیږي د مثال په توګه هغه اوبه چې ولاړې وي او تر (10 X 10) څخه یې مساحت کم وي او نجاست پکې غورځیږي .

هغه اوبه چې هم پاکي وي او پاکونکې وي په لاندې ډول دي :

١. رواني اوبه

دا هغه اوبه دي چې بهيږي او دا تر هغه وخته پورې نه مرداريږي ترڅو چې ددې په دريو صفتونو (خوند، رنګ او بوی) کې يو دنجاست په ډول بدل شوي نه وي د مثال په ډول که رواني اوبه وې په هغه کې چا مرداره يا شراب وغورځول ددېنه په شکته اوبو کې که خوند رنګ او بوی بدل شوي نه وو نو اوبه پاکې دي او که پدې دريو واړو کې يو هم بدل شو نو بيا اوبه مرداري دي .

⇦ زمونږ د متونو کتابونو له مخې که په نهر کې په عرض سره سپی بند وو او اوبه تر هغه نه را تېرېدلې او اوبه دومره وې چې اکثر يې له سپي سره لګېدلې نو بيا اودس وربانديې نه کيږي او که د اوبو کمه برخه ورسره لګېده او خوند رنګ بوی يې نه وو بدل بيا اودس وربانديې کيږي .

⇦ که په بام نجاست وي او باران کيږي تر ناوه چې کومې اوبه را توئيږي که رنګ خوند او بوی يې د نجاست په ډول نه وي نو اوبه پاکې دي په اوس حالت کې دا د جاري اوبو حکم لري .

⇦ او کله چې باران و دریږي نو بیا ددې اوبو حکم د روانو نه دی نو که په بام نجاست وو د هغه سره اوبه ولاړې وې د باران د درېدلو نه وروسته هغه اوبه شکته را وبهېدې نو دا پاکې نه دي که په جامه یا ځان ولګیږي نو مونځ ورسره نه کیږي .

## ۲. ولاړې اوبه (لکن ډېرې)

هغه اوبه چې ډېرې وي هغه اګر که ولاړې وي لکن ددې حکم د روانو دی که په یو طرف کې یې نجاست و غورځیږي ترڅو چې د ټولو اوبو خوند رنګ یا بوی ورسره بدل شوی نه وي نو د بل لوري نه یې اودس کیږي .

⇦ حوض چې د شرعي ګز په حساب لس په لسو کې وي او ژور والی یې یو ګز او یوه عامه لوېشت وي نو دا ډېرې اوبه دي .

⇦ د داسې ولاړو اوبو بوی که خراب وو او نجاست پکې نه شکاره کېدو او نه د نجاست په غورځېدلو باندې علم وو نو بیا هم اودس ورځخه کیږي ځکه کله کله اوبه صرف د درېدلو له امله هم بوی بدلوي (فتاوای قاضي خان)

## ۳. د کوهي اوبه

په عادي توګه خو دا اوبه پاکې وي لکن که پدې کې کوم نجس شی ور و غورځیږي نو بیا په دوه قسمه دي :

اول : داسې نجاست وي چې د ټولو اوبو وېستل د کوهي صفایي وي .

- کله چې په کوهي کې کوم حیوان و غورځیږي او هغه پکې مړ شي پکې و پړسیږي یا وریږیږي نو هغه حیوان او ټولې اوبه ترې وېستل ضروري دي که حیوان وړوکی وي او یا لوی وي (الهدایة)
- که د ګډ په شان حیوان په کوهي کې وغورځېدو که حیوان پاک وو او په بدن یې هم ګندګي نه وه که یې خوله په اوبو کې لګېدلې وه نو بیا به د هغه د جوټې حکم ته ګورو که جوټه یې پاکه وه لکه ګډ نو اوبه پاکې دي او که جوټه یې مرداره وه نو اوبه مردارې شوې دي ویستل یې ضروري دي .
- او هغه شی چې نجس العین وي لکه خنزیر نو دهغه په مطلق بدن لګېدلو سره هم اوبه ټولې مرداریږي ا ګر که یې خوله اوبو ته نه وي رسېدلې نو په کوهي کې د ټولو اوبو وېستل ضروري وي .
- د خنزیر نه بغیر نور وحشي حیوانات که ژوندی را وزي او خوله یې په اوبو کې نه وي غوټه شوې اوبه ورسره نه مرداریږي (عالمګیري) .

⇦ که کافر مړ انسان پکې وغورځول شي که هغه ته غسل ورکړل شوي وي او که نه وي ورکړل شوی اوبه ټولې ورسره مرداريږي او که مسلمان مړی پکې وغورځول شي نو که تر غسل وړاندې وو بيا اوبه مردارې دي او که د غسل نه وروسته وو بيا اوبه ندي مردارې (عالمګيري / التتارخانيه)

⇦ که داسې کوهی وو چې دهغه اوبه نه وچېدې نو دهغه نه ټولې اوبه ويستل ممکن نه وي نو دهغه څخه به دوه سوه ۲۰۰ درميانه ډولچې ا وبه وباسي (الاختيار شرح المختار)

⇦ او يا به د دوو ماهرينو کسانو څخه پوښتنه وکوي چې پدې کوهي کې تاسې ته څومره اوبه ښکاره کيږي که هغوی هرڅو ډولچې يادې کړې هغومره به ترې وباسي بيا دا کوهی پاک دی.

⇦ که چرګه کوتره يا دېته ورته بل حيوان پکې مړ شو پکې ريږېدلی او پړسېدلی نه وو نو څلوېښت يا پنځوس ډولچې به ترې وباسي (محيط السرخسي)

⇦ که په کوهي کې موږک او يا پدې اندازه بل حيوان مړ شو تر پړسېدلويا ريږېدلو وړاندې را وويستل شو نو شل يا دېرش ډولچې به ترې را وباسي کوهی ورسره پاکيږي .

⇦ دا ډولچې به وروسته د حیوان د وېستلو نه وېستل کیږي او که یې څه ډولچې د حیوان له وېستلو وړاندې وېستلې وي هغې ته اعتبار نشته (عالمګیري)

⇦ که د حیوان حتی د موږک لکی پرې کړل شوه او په کوهي کې وغورځول شوه د کوهي اوبه مرداریږي ټولې به ویستل کیږي او که چېرته د پرې کېدلو په ځای داسې څه شی لګول شوي وو چې اوپه له زخم سره نه لګیږي نو بیا اوبه نه مرداریږي .

⇦ هغه حیوان چې د موږک او چرګې په مینځ کې وي حکم یې د موږک دی هغه حیوان چې د چرګ او ګډ په مینځ کې وي حکم یې د چرګ دی .

⇦ که په کوهي کې بل نجس شی وغورځېدل لکه نجسه جامه او هغه په کوهي کې ورکه شوه نو د کوهي نه چې اوبه وویستل شي دا کفایت کوي او که هغه شی پیدا شو نو هغه به د اوبو له ویستلو نه وړاندې را وباسي .

⇦ کله چې د کوهي اوبه د معلومو ډولچو یا ټولو اوبو د ویستلو نه وروسته پاکې و ګڼل شي نو ډولچې او رسی او نور د کوهي لوازمات ټول پاک ګڼل کیږي .

⇦ کوهی به هغه وخت نجس ګڼل کیږي چې په یقیني توګه د نجاست غورځېدل پکې معلوم شي په شک ،

شبه او خالي احتمال باندې کوهی نه نجس کیږي .

## دوهم : اوبه را ویستل مستحب وي :

⇦ که موږک په کوهي کې وغورځیږي او ژندی را وزي نو صرف شل ډولچې به وباسي دا مستحب دي په همدې ډول که چرګه پکې وغورځېده او ژوندی بېرته را ووتله نو څلوېښت ډولچې به ترې وویستل شي او که چرګه داسې چرګه وه چې په کور کې پالل شوې وه او په کوڅو کې په خوراکونو پسې نه ګرځېده نو بیا د هېڅ هم ترې نه وباسي .

⇦ کله چې د کوهي نه د پاکي لپاره اوبه ویستل کیږي تر شلو ډولچو به کمې ترې نه وباسي .

⇦ ددې امله چې که ګډ په کوهي کې وغورځیږي او ژوندی را ووزي نو هېڅ اوبه ویستل ترې ضروري نه دي ځکه اوبه پاکې دي لکن بیا هم چې صرف د زړه د اطمنان لپاره ویستل غواړي نو شل ډولچې به وباسي .

## مختلفې مسئلې:

⇦ د مېوې په جوس باندې اودس نه کیږي نه په نورو دېته ورته شربتونو اودس کیږي .

⇦ په هغه اوبو اودس نه کیږي چې صابون پکې ګډ شوی وي .

⇦ هغه اوبه چې ولاړې وي او د ونې پاڼې پکې غورځېدلې وي دهغې د زیات والي له امله یې په خوند رنګ یا بوی کې تغیر راغلی وي اودس وربانديې کیږي (السراج الوهاج)

⇦ هغه اوبه چې د خاورې رنګ واخلي (خړې شي) او خوند رنګ بوی یې د هغې امله بدل شي اودس وربانديې کیږي .

⇦ هغه اوبه چې په کوم ځای کې د ډېر وخت درېدلو له امله یې رنګ خوند یا بوی خراب شوي وي اودس وربانديې کیږي .

⇦ د سیل اوبه که بهیږي سره ددې چې هرڅومره خړې وي اودس پرې کیږي او که داسې ټینګې شوې چې له بهېدلو نه ووتلې بیا اودس وربانديې نه کیږي .

⇦ که په اوبو کې د ښه نظافت په موخه کوم شی واچول شول لکه صابون یا زمی یا بل شی نو بیا اودس وربانديې کیږي او که ددې سره اوبه ټینګې شوې بیا اودس وربانديې نه کیږي (محیط السرخسي)

⇦ هغه پاکې اوبه چې بل پاک شی ورسره ګډ شي لکه د ممیزو (کشمیشو) شربت شودې یا بل شی

او پدې سره د اوبو نوم ترې لرې شي بیا ورته شربت یا بل څه ویل کیږي نو اودس وربانديې نه کیږي (عالمګیري)

⇦ هغه اوبه چې یو ځل د ثواب لپاره یا د بې اودسي د پورته کولو په موخه استعمال شي بیا وربانديې اودس نه کیږي .

⇦ که ماشوم په اوبو کې لاس ووهي نو اوبه ورسره نه مرداریږي او که ښکاره وه چې د ماشوم لاس پاک نه وو بیا اوبه مرداري دي لکن احتیاط دادی چې که کېدای شي ددې په ځای د اوداسه لپاره نورې له شک نه پاکې اوبه استعمال کړي (منیة المصلي)

⇦ که د غسل په داسې حالت کې چې په بدن باندې کوم ظاهري نجاست نه وي لګېدلی د بدن څخه د اوبو څاڅکي هغه لوښي ته ورشي چې په کوم کې نورې اوبه ایښې وي نو هغه اوبه ددې څاڅکو څخه نه مرداریږي او که چېرته په هغه لوښي کې د غسل په وخت د انسان له بدن څخه دومره اوبه ور تویې شي لکه په هغه لوښي کې چې له مخکې نه وې او یا له هغې نه هم زیاتې وې نو بیا دا اوبه پاکې دي لکن پاکونکې نه دي اودس وربانديې نه کیږي او که په جامه ولګیږي نو مونځ ورسره کیږي .

# نجاست

نجاست په دوه ډوله دی .

## ۱. نجاست حقیقي

هغه نجاست وي چې په سترګو ښکاره کیږي لکه هر ډول ګندګي او داسې نور .

## ۲. نجاست حکمي

دا هغه نجاست وي چې په سترګو نه ښکاره کیږي لکن شریعت ورته نجاست ویلی وي لکه بې اودسه کېدل یا لکه الله ① چې فرمایي بېشکه مشرکان نجس دي .

هغه نجاست چې په سترګو باندې ښکاره کیږي په دوه ډوله دی .

۱. نجاست غلیظة (سخته پلیدي)

۲. نجاست خفیفه (سپکه پلیدي)

نجاسات غلیظة د مثال په توګه په لاندې ډول دي:

⇦ د انسان قضاء حاجت که لوی وي که وړوکی او هر هغه څه چې (بغیر د باد نه) د انسان د

بدن څخه وزي او اودس وربانديږي ماتيږي هغه ټول نجاستونه غليظة دي لکه مذي ، مني ، وينه او داسې نور .

⇦ په قضاء حاجت او بولو کې د لوی او ماشوم فرق نشته که د هغه ماشوم بولې وي چې هغه ډوډۍ خوراک نه وي شروع کړی هغه هم په حکم کې د لوی سړي له بولو سره برابرې دي (عالمګيري)

⇦ د مرداري غوښه ، شراب ، د هغه حيواناتو بولې چې غوښه يې نه خوړل کيږي ټول نجاسات غليظه دي .

⇦ د ټولو حيواناتو ګندګي (خوشايه او داسې نور) .

⇦ د چرګانو د سپيو د هيليو مرغاويو ټولو ګندګي نجاست غليظة دی (فتاوی قاضي خان)

⇦ همدارنګه د پيشو موږک او نورو ديته ورته حيوانانو بولې هم نجاست غليظة دی (فتاوی قاضي خان)

## د نجاست غليظة (د پورتنيو نجاستونو) حکم

⇦ نجاست غليظه چې په بدن يا جامه باندې د يو درهم له اندازې يعني د لاس د ورغوي له

اندازې نه زيات شي بيا مونځ ورسره نه کيږي او که دا نجاست وچ چېرته پروت وي چې وزن يې تر ۳ ماشو زيات شي بيا ورسره مونځ نه کيږي .

## نجاست خفيفه

دا هغه نجاست وي چې په جامه يا اندام باندې ولګيږي هغه جامه يا اندام يې چې تر څلورمې برخې نه وي ککړ کړی بيا معاف دی د مثال په ډول لکه لاندې شيان .

هغه حيوان چې خوړل کيږي دهغې بولې او د آس بولې .

د عامو مرغانو ګندګي .

مسئلې:

⇦ هغه شيان چې بهېدونکي وينه ونلري په مړه کېدلو سره يې اوبه يا خوراک نه مرداريږي لکه مچ، غومبسه مياسه او داسې نور .

⇦ هغه شيان چې په اوبو کې ژوند کوي که په اوبو کې مړه شي اوبه ورسره نه مرداريږي لکه ماهی او داسې نور .

⇦ هغه شی چې نجس وي او وسوزي ايره يې که په لږو اوبو کې وغورځول شي اوبه ورسره نه مرداريږي يعني هغه ايره پاکه ده .

⇦ که په جامه باندې نجس غوړي تويې شي او د يو درهم نه لږ وي بيا وروسته په نوره جامه کې سرايت وکوي او ډېره ساحه غوړه کړي نو بيا هم مونځ پکې نه کيږي .

⇦ که لنده مرداره جامه په پاکه جامه کې ونغښتل شي که پاکه جامه دومره تړې لنده شي چې اوبه تړېنه څاڅي او يا نښڅېځل (نچوړ) کېدلی شي نو پاکه جامه هم اوس نجسه ده او که صرف نم يې تړې اخستی وي نو نه ده نجسه .

⇦ که لنده پښه يې په نجس فرش کېښوده پښه ورڅخه نه مرداريږي او که وچه پښه يې په لانده نجس فرش کېښوده او پښه يې له هغه څخه لنده شوه نو پښه مرداره شوه (السراج الوهاج)

⇦ که خوشايه ( دمال ګندګي) يې په خټه کې ګډ کړل او څه شی يې تړې جوړکړل او هغه وچ شول که په هغه باندې يې لنده جامه واچوله نه ورڅخه مرداريږي (عالمګيري)

⇦ هغه ځای چې حيوانات پکې تړل کيږي شپول (غوجل) چې خولې شي او خولې يې په جامه را وڅاڅي جامه نه ورسره مرداريږي (فتاوی قاضي خان)

⇦ څوک چې په نجس فرش باندې ويده شي او ورباندې خولې شي چې فرش تړېنه لوند شي نو د

انسان جامه او ځان ورڅخه نه مرداریږي او که هغه لوند والی دومره زیات وو چې فرش په پوره ډول لوند وو او د فرش لوند والی بېرته انسان ته ورسېدو نو جامه یې او ځان یې دواړه نجس کیږي وینځل یې ضروري دي (فتاوی قاضي خان )

⇦ که په اوبو کې کوم نجس شی وغورځېدل او یا پکې حیوان بولې وکولې له هغه اوبو نه انسان ته څاڅکي ور والوتل د اوبو په څاڅکي سره جامه یا بدن نه مرداریږي او که یې یقین وو چې دا د نجاست یا بولو څاڅکي دي بیا مرداریږي.

⇦ که د انسان په پښو باندې د لارې خټه وي ترڅو چې په یقین سره ښکاره نشي چې دا مرداره خټه ده او یا یې په پښه مرداري ښکاره نشي مونځ ورسره کیږي لکن احتیاط دادی چې پښې وویځي (الواقعات الحسامیة)

⇦ که سپی کوم شی په خوله کې ونیسي ترڅو چې د سپي د خولې لوندوالی په هغه شی باندې ښکاره نشي هغه شی پاک دی .



# پاکي

د نجاست لرې کولو ته طهارت یا پاکي ویل کیږي د نجسو شیانو د پاکولو لپاره مختلفې طریقې دي .

۱. وینځل

⇦ په بدن یا جامه چې ګندګي ولګیږي نو په اوبو یا بل مائع شي ووینځل شي هغه جامه یا بدن پاکیږي او که مائع داسې شی وي چې په نېښتېځلو له جامې څخه نه وزي نو په هغې سره یې پاکي هم نه کیږي لکه تېل یا غوړي .

⇦ هغه نجاست چې په سترګو لیدل کیږي چې اثر یې له جامې نه ختم شي هغه پاکه شي حساب ته پکې اعتبار نشته .

⇦ که د نجاست اثر بوی یا رنګ په اول ځل وینځلو سره ختم شو نو هم صحیح ده او که په پنځم ځل یا تردې هم په زیاتو وینځلو پاک شو نو صحیح ده (عالمګیري)

⇦ که داسې نجاست وو چې پاک شو لکن رنګ یا بل اثر یې په خالي اوبو لرې کول ممکن نه وو صابون یا بل شي ته پکې ضرورت وو نو بیا یې هغه اثر ختمول واجب نه دي .

⇦ که مردار غوړي په جامه یا بدن ولګېدل لکن بیا هم د هغه غوړیو اثر په بدن یا جامه کې پاتې وو بیا هم دا جامه پاکه ده ځکه په خالصو اوبو سره د غوړیو اثر له جامې څخه نه وزي .

⇦ هغه نجاست چې په سترګو نه ښکاره کیږي د نجاست ځای چې درې ځله وینځل شي پاکیږي د هرځل وینځلو نه وروسته نچوړ (نیښځېځل) ضروري دي په آخري ځل به یې لږ د ډېر زور سره نچوړ کړي .

⇦ هغه شی چې نچوړ (نېښځېځل) کېدلی نه شي لکه لوی فرش د لرګي لوښي یا بل داسې شی نو هغه به وینځل شي او بیا به پریښودل شي ترڅو ورڅخه د اوبو څڅېدل بند شي نو بیا به وینځل شي او درې ځله به ورسره دا کار وکول شي هغه پاکیږي . (حدیث شریف ابي داود ، مسلم)

⇦ که پوزی یا بل دېته ورته فرش نجس شي نو که وچ وي هغه دې و ګروي چې تری پاک شي او اثر یې ترې لاړ شي پاکیږي او که لوند نجاست وي نو ودې وینځي .

⇦ هغه فرش چې لکه قالین داسې وي تر ډېره وخته پورې په روانو اوبو کې کېښودل شي ترڅو لکه

يوه شپه داسې اوبه وربانديږي وبهيږي نو پاکيږي .

⇦ د خاورې لوښي کې چې شراب يا بل نجس شى واچول شي هغه په راساً وينځلو سره نه پاکيږي دهغې د پاکول طريقه داده چې يو ځل به له ا وبو څخه ډک شي او د يو ساعت لپاره به کېښودله شي بيا به اوبه ترې تويې کړل شي او نوې اوبه ورباندې تېرې کړل شي بيا به ډک شي تر دريو وارو پورې بيا به دا لوښى پاک شي .

⇦ که په عامو لوښيو کې شراب واچول شي نو درى ځلې به د ښه کوښښ سره ووينځل شي چې د شرابو بوى ترې لاړ شي نو لوښى پاکيږي (التتارخانية)

⇦ که د جامې يو طرف نجس شو د وينځلو په وخت کې په غلطي کې د جامي بل طرف ووينځل شو نو اوس يې ددې جامې سره مونځ کيږي او که د يو څو ورځو وروسته ښکاره شوه چې نجس بل طرف وو نو بيا به کړي مونځونه ټول بېرته را وګرځوي .

⇦ په پورتني صورت کې د احتياط خبره داده چې کله په جامه کې د نجاست ځاى ورک شي نو ټوله جامه د ووينځي .

⇦ که په جامه کې يو لستوڼی نجس شو بېا ترې ورک شو چې کوم يو وو نو ښه خبره داده چې دواړه دې ووينځي .

۲. ګرول / سولول

⇦ چې د څرمنې په ډول شی وي د هغه نه نجاست د کوم شي په مرسته د سولولو یا ګرولو په واسطه ختمیږي .

⇦ د شیشې په ډول ښوی شی چې وي د هغه نه چې نجاست په کوم شي پاک کړل شي هغه پاکیږي .

⇦ په همدې ډول توره او یا د وسپنې نه جوړ شیان چې نجس شي په یوه پاکه جامه دې هغه نجاست ورڅخه لرې کړي دا توره او یا له وسپنې څخه جوړ شوی بل شی پاکیږي .

⇦ او که یې ووینځي او په اوبو سره هغه نجاست ورڅخه پاک کړي نو بیا هم پاکیږي .

⇦ او که دا نجاست په شیشه یا وسپنه باندې کلک لګېدلی وي چې په ټوټه سره د لرې کولو سره نه لرې کیږي نو بیا به یې خامخا وینځي .

⇦ که په بوټ باندې نجاست ولګیږي چې په سترګو ښکاره کیږي لکه منې، د انسان ګندګي یا د حیواناتو ګندګي نو چې وچه وي په سولولو سره پاکیږي داسې به یې وسولوي چې د هغه نجاست اثر په بوټ یا موزه باندې پاتې نه شي او که چېرته دا نجاست لوند وي نو بیا یې وینځل ضروري دي .

⇦ امام ابو یوسف رحمه الله فرمايي که لوندوي هم وي لکن ډېر زيات يې پداسې ډول وموښي چې د هغه نجاست بالکل اثر پاتې نشي بيا هم پاکيږي .

۳. وچېدل

⇦ په زمکه چې نجاست وغورځيږي هغه نجاست چې ترېنه لرې کړل شي او زمکه وچه شي د هغه نجاست اثر ترې ختم شي زمکه پاکه ده .

⇦ پدې زمکه بيا مونځ کېدلی شي او تيمم بهددې زمکې څخه نه کوي .

⇦ همدا حکم د هر هغه شي دی چې هغه له يو ځای نه بل ځای ته نشي نقل کېدلی لکه دېوال ونه زمکه او داسې نور .

⇦ که په زمکه باندې خښتې غوړول شوې وي حکم يې د زمکی دې په وچېدلو سره پاکيږي .

⇦ که په زمکه باندې نجاست ولګېدو او هغه په وچېدو سره پاکه شوه نو که بېرته لنده هم شوه بيا نه نجسه کيږي . (المحيط)

⇦ که سخته زمکه وي لکه سيمټ او يا دې ته ورته نو چې اوبه پرې واچوي او بېرته يې په کوم شي ترېنه وچې کړي درې ځله ورسره دا کار وکوي نو پاکيږي او که ډېرې اوبه وربانديې

واچوي اوبيا يې پرېږدي چې پخپله وچه شي نو زمکه پاکيږي .

٤ . سوزېدل

⇦ د حيواناتو ګندګي يا نور ديته ورته نجاستونه او ګندګي چې وسوزي او ايره شي هغه ايره يې پاکه ده .

⇦ د ګډ يا د بل حيوان په سر چې وينه وي هغه اور ته ونيول شي او وينه يې وسوزي هغه پاکيږي .

⇦ چې د مرداري ختې نه لوښی جوړ کړي او هغه لوښی بيا په اور پوخ کړي هغه پاکيږي .

⇦ همدارنګه چې د مرداري ختې نه خښته جوړه کړي او هغه په اور پخه کړي هغه پاکيږي .

⇦ کله چې ښځه تنور ګرم کړي او د ډوډی د پخولو نه وړاندې يې په نجسه لنده ټوټه را پاک کړي که د ډوډی د وهلو په وخت کې هغه لوند والی وربانډې وي ډوډی وربانډې مرداريږي او که وچ شوی وي بيا پاکه ده

## د پس خوردې (جوټې ) حکم .

⇦ د انسان پس خورده پاکه ده که مسلمان وي که کافر ، که جنب وي او که پاک ، که د حيض يا نفاس په وخت کې ښځه وي يا پاکه وي په هر

حالت کې یې پس خورده پاکه ده صرف د هغه کس پس خورده مرداره ده چې هغه اوس شراب څښلي وي که د هغه نارې د جامې سره یا بدن سره ولګیږي نو مونځ ورسره نه کیږي او که د شرابو د څښلو نه متصل د کوم لوښي نه اوبه وڅښي په هغه لوښي کې پاتې اوبه مرداري دي که په جامه ولګیږي مونځ ورسره نه کیږي او هغه لوښی هم مردار دی وینځل یې فرض دي چې د شرابو د څښلو نه لږ وخت تېر شي او بیا بیا هغه نارې تېرې کړي نو بیا یې خوله پاکیږي (عالمګیري/ السراج الوهاج).

⇦ که د شرابو څښلو په وخت کې برېتونه په شرابو کې لګېدلې وي هغه بیا په اوبو کې ولګیږي اګر که یو ساعت وروسته هم وي نو هغه اوبه ورسره مرداریږي (عالمګیري / التتارخانیة)

⇦ د پېشو پس خورده مکروه تنزیهي ده .

⇦ لکن کله چې پیشو کوم مردار شی وخوري او بیا فوراً اوبه وڅښي په لوښي کې پاتې اوبه مردارې دي .

⇦ په کوڅو کې د ګرځېدونکې چرګې پس خورده مکروه ده .

⇦ د سپي او نورو ښکار کونکو حیواناتو پس خورده مرداره ده که په لوښي کې خوله ووهي

نو درى ځله به وينځل کيږي او اوه ځله يې په اوبو يو ځل يې په خاوره وينځل مستحب دي .

- د خره او د قچر پس خورده پاکه ده هېڅ شک پکې نشته لکن دا چې پاکول کولى شي او کنه پدې کې شک دى .
- د حيواناتو د بدن د خولو حکم هم دهغې د پس خوردې په حکم دى د چا چې هغه مرداره نو دا يې هم مرداره وي .
- هغه اوبه يا خوراک چې آس پکې خوله ووهي هغه پاک دي (عالمګيري)
- هغه حيوانات چې غوښه يې خوړل کيږي پس خورده يې بلا کراهية نه پاکه ده بغير د هغې چرګې نه چې په کوڅو کې ګرځي او د غوايه او اوښ نه ځکه دا مکروه دي .
- هغه مارغان چې ګندګي او ښکار خوري د هغوى پس خورده مکروه ده او که هغه په کور کې ساتل شوي وي چې مالک يې پوهيږي چې ده مردار شى نه دي خوړلي نو بيا يې مښوکه پاکه ده که په اوبو يا خوراک کې ولګيږي نو پروا يې نشته .

## قضاء حاجت

# دقضاء حاجت ادبونه

⇦ قضاء حاجت په خاص ځاى كې كول :

مسلمان به تر خپلې وسې پورې په هرځاى كې د قضاء حاجت كولو څخه ځان ساتي او په خاصه توگه له داسې ځايونو څخه چې هلته خلكو ته د تكليف سبب جوړيږي لكه په هغه ځاى كې چې له كوم ځاى څخه خلك اوبه وړي ، چېرته چې خلك كيني ، عامه لاره وي ، سيورى وي ، لمر ته دكېناستلو ځاى وي ، د قضاء حاجت كولو په وخت خلكو ته ښكاره كيږي او داسې نور رسول الله ﷺ وفرمايل : ددوو لعانيانو څخه ځان وساتئ (تاسې هغسې جوړ نشئ) صحابه وو رضي الله عنهم ترې پوښتنه وكوله چې لعانيان څوك دي ؟ رسول الله ﷺ وويل : هغه چې دخلكو په لاره كې قضاء حاجت كوي او يا دهغوى په سيوري كې .

رواه مسلم

⇦ دقضاء حاجت ځاى ته په ننوتلو كې چپه پښه او په راوتلو كې ښى پښه وړاندې كول :

كله چې انسان د قضاء حاجت ځاى ته ځي نو په كار ده چې چپه پښه وړاندې كړي او چې كله را وزي بيا ښى پښه وړاندې كړي او د ننوتلو په وخت كې به ووايي :

بسم الله اللهم إني أعوذ بك من الخبث والخبائث

او له بيت الخلاء څخه به د راوتلو په وخت کې وواییې :

غفرانك

⇦ داسې شی له ځان سره بیت الخلاء ته نه وړل چې د الله ① ذکر پکې وي .

کله چې مسلمان بیت الخلاء ته ننوزي هلته باید داسې شی له ځان سره یو نه سي په کوم کې چې د الله تعالی ذکر وي لکه جیبي قرآن کریم ، سورت یس، او داسې نور مبارك شیان او که داسې حالت وو چې د ورکېدلو له امله یې بهر نشو پریښودلی هغه بیا بېل صورت دی ، د حضرت رسول الله ﷺ یوه ګوتمة وه په هغې باندې نقش کړل شوي وو محمد رسول الله کله به چې بیت الخلاء ته ننوتلو هغه به یې کېښوده .

رواه ابو داود

⇦ په کوم حمام کې چې انسان غسل کوي هلته به بولې نه کول :

په کوم حمام کې چې اودس کوي که هلته د قضاء حاجت لپاره پکې بېل ځای نه وو جوړ شوی نو هلته به بولې نه کوي پدې اړه رسول الله ﷺ فرمایي : په تاسې کې دې څوك په هغه حمام کې بولې نه کوي چې بیا هماغلته اودس هم کوي

ددینه وسوسه پیدا کیږي .

⇦ د قضاء حاجت په وخت کې خبرې نه کول :

مسلمان چې کله قضاء حاجت ته لاړ شي هلته به له چا سره خبرې نه کوي او نور خلك به هم هغه دخبرو کولو ته نه مجبور کوي ، په یو ځای کې رسول الله ﷺ بولې کولې یو سړی هلته تېرېدلو سلام یې پرې واچولو رسول الله ﷺ د هغه دسلام جواب ورنه کړو .

رواه مسلم

⇦ د قضاء حاجت نه وروسته د بیت الخلاء نه په راوتلو کې تادي (بېړه) کول:

کله چې انسان خپل حاجت پوره کړي باید په راوتلو کې بېړه او تادي وکوي ځکه هغه مبارك ځای ندی او انسان هلته صرف د خپل ضرورت لپاره ورځي او چې کله ضرورت پوره شي نو راوتل ښه دي علاوه پردې کېدلی شي د بل چا ضرورت وي او ستا د راوتلو انتظارکوي .

⇦ په اوبو کې اسراف نه کول :

انسان که په داسې ځای کې قضاء حاجت کوي چې هلته د صفایي لپاره اوبه استعمالیږي باید د اوبو لحاظ وساتي او اسراف په هېڅ شي کې هم ښه ندی ځکه الله تعالی فرمایي:

يَا بَنِي آدَمَ خُذُواْ زِينَتَكُمْ عِندَ كُلِّ مَسْجِدٍ وكُلُواْ وَاشْرَبُواْ وَلاَ تُسْرِفُواْ إِنَّهُ لاَ يُحِبُّ الْمُسْرِفِينَ الاعراف 31

ترجمه : اى د آدم زامنو ! واخلئ خپل ښائست په نزد دوخت د هر مانځه کې ( په آغوستلو دښو او پاکو جامو سره ) او خورئ او څښئ اسراف مه کوئ الله تعالى اسراف كونكي نه خوښوي .

⇦ قبلې ته مخ نه اړول او نه شا اړول :

د قضاء حاجت په دوران کې به انسان کوښښ کوي چې قبلې ته يې مخ نه شي او نه يې شا شي رسول الله ﷺ فرمايي : په تاسې کې چې کوم يو د قضاء حاجت لپاره راشي نو مه قبلې ته مخ کوئ او مه ورته شا کوئ .... الحديث .

رواه مسلم

⇦ پرده کول :

کله چې انسان په سفر کې وي او يا په داسې ځاى کې ورته ضرورت پېښ شي چې هلته د قضاء حاجت لپاره معين ځاى نه وي نو په داسې ځاى کې به قضاء حاجت کوي چې دخلکو له سترګو څخه لرې وي او صرف دومره ځان به ښکاره کوي څومره چې ضرورت وي او بې ضرورته به خپلې جامې له ځان څخه نه راټولوي حضرت جابر ؓ فرمايي : مونږ له رسول الله ﷺ سره په سفر کې وو او رسول الله ﷺ به قضاء حاجت نه کولو ترڅو چې دخلکو

له سترګو څخه په پټ شو چې بیا به نه ښکاره کېدلو .

رواه ابن ماجه

⇦ د بولو دڅاڅکیو څخه ځان ساتل :

د قضاء حاجت په وخت کې به دبولو له څاڅکیو څخه ځان ساتي دا واړه واړه څاڅکي د قبر د عذاب سبب کیږي له حضرت عبد الله ابن عباس ❽ څخه روایت دی رسول الله ﷺ د دوو قبرونو په خوا کې تېرېدو نو ویې فرمایل : دا دواړه په عذاب کې دي او په عذاب کې هم دکومې غټې خبرې له امله ندي (دکومې نه چې ځان ساتل مشکل وي) په دوی کې یو د بولو (له څاڅکیو) څخه ځان نه ساتلو او دې دوهم به دخلکو په مینځ کې شیطانت کولو.

متفق علیه

⇦ استنجاء کول :

مسلمان به د قضاء جاجت نه وروسته دخپل ځان صفایي ضرور کوي یا په اوبو سره او یا په تیږه او یا لوټه سره الله تعالی د هغه صحابه وو ﷺ صفت کړی دی چې هغوی به د ځان صفایي د لوټې او یا تیږې نه وروسته په اوبو سره کوله او فرمایلي یې دي : فِيهِ رِجَالٌ يُحِبُّونَ أَن يَتَطَهَّرُواْ په دغه مسجد (قباء) کې هسې سړي دي چې خوښوي دوی

دا چې ځانونه ښه پاك كړي.

⇦ د اودس تر وچېدلو پورې صبر كول :

د انسان بولې چې ختمې شي اودس فوراً نه وچيږي نو ددې وجې نه به د بولو د ختمېدلو وروسته په يو څه وخت تېرولو ، غاړه تازه كولو او نورو حركاتو سره د اودس د وچولو كوښښ وكوي بيا به استنجاء وكوي ترڅو د استنجاء څخه وروسته هغه لږ لږ بولې را ونه وزي كومې چې د بولو په نلكه كې پاتې وي چې بيا د ځان او دجامو د ګنده كېدلو سبب هم جوړيږي او كه تر اوداسه وروسته را ووزي نو اودس هم ورسره ماتيږي.

⇦ د اودس د وچېدلو په اړه ډېر فکرونه نه کول :

د اودس د وچېدلو په اړه به ډېر فکرونه نه کوي ددې نه به ده ته د وسوسې بېماري پيدا شي خپل کوښښ به وکوي نور کار به الله ① ته وسپاري او که بيا هم ده ته وسوسه ډېره ورځي رسول الله ﷺ ددې وسوسې لپاره علاج ښودلی دی چې د بولو کولو نه وروسته دې خپلې شرمګاه ته پخپله اوبه ور وشيندي بيا به شيطان پدې ونه توانيږي چې ده ته ووايي شايد چې ستا جامه په بولو باندې لنده وي

رواه ابو داود ، نسائي ، ابن ماجه

⇦ د صفايي لپاره چپ لاس استعمالول :

مسلمان به د ټولې صفايي په دوران کې کوښښ کوي چې چپ لاس استعمال کړي پدې اړه رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي : کله چې يو د تاسې بولې وکوي بيا دې خپله تناسلي آله په ښي لاس کې نه نيسي او په ښي لاس دې استنجاء نه کوي .

متفق عليه

⇦ باد ته مخامخ بولې نه کول :

په داسې حالت کې بولې کول د انسان د بدن او جامو د بې نمازه کېدلو سبب جوړیږي ځکه هغه بولې چې باد ته مخامخ کیږي هغه باد بېرته انسان ته ور بادوي .

⇦ په ولاړه بولې نه کول :

د بولو لپاره کېناستل سنت دي ددې لپاره چې د بولو وړې وړې ذرې انسان ته ور وانه لوزي .

⇦ د قضاء حاجت او استنجاء نه وروسته لاسونه وینځل :

کله چې انسان د قضاء حاجت او استنجاء څخه فارغ شي د طبیعت او نظافت تقاضاء ده چې باید خپل لاسونه په پوره تاکید سره ښه صفا ووینځي .

او د راوتلو په وخت کې باید خپله ښی پښه را مخکې کړي او را ووزي او د وتلو په وخت کې به ووایي :

غفرانك

# استنجاء

د قضاء حاجت نه وروسته د انسان څخه د ګندګي د وتلو د ځای صفايي ته استنجاء وايي دا پاکي کله په کاڼي سره وي ددې امله استنجاء ته کله استجمار هم وايي او همدارنګه روا ده چې د کاڼي په ځای لوټه ، د رخت ټوټه ، د لرګي ټوټه هم استعمال کړل شي .

⇦ د انسان د دوو لارو څخه چې هر شی راوزي پدې پورته شيانو يې صفايي کېدلی شي که هغه له انسان څخه عادي راوتلې ګندګي وي او که د ګندګي په ځای بل شی د مثال په ډول لکه وينه راوزي نو هم يې پورته ياد کړل شوي شيان صفايي کولی شي .

⇦ترپورته ياد کړل شويو شيانو څخه اوبه استعمالول غوره دي .

⇦ که چېرته دا پورته ياد شوي شيان هم استعمال شي او ورسره اوبه هم استعمال شي نو بيا ډېر غوره دي .

⇦ که د نجاست د وتلو له ځای نه نجاست يو طرف او بل ته نه وو خپور شوی نو پدې حالت کې استنجاء سنت ده .

⇦ نو که چېرته د پردې ځای نه وو او د استنجاء په حالت کې دده عورت ښکاره کېدو نو بيا

به استنجاء نه کوي ځکه د عورت پټ ساتل فرض دي .

⇦ او که خپور شوی وو لکن تر یو درهم لږ وو نو پدې صورت کې د نجاست لرې کول واجب دي .

⇦ او که تر یوه درهم زیات وو نو بیا استنجاء او د هغه نجاست لرې کول فرض دي .

⇦ په اوبو سره چې کله استنجاء کوي نو که روژه یې نه وه نو په استنجاء کې دې ډیره خواري وکوي چې دده یقین شي چې اوس د نجاست نه ښه پاک شو او که یې روژه وه نو په استنجاء به ډیر وخت نه تېروي او په کېناستلو کې به هم ډیر فراخ نه کینې .

⇦ کله چې د نجاست ځای په استنجاء کې پاک شي نو لاس هم ورسره پاکیږي لکن بیا هم د ښه نظافت لپاره به له استنجاء نه وروسته دواړه لاسونه ښه پاک وویینځي بیا به نور اودس مخکې بوزي .

د خالي بولو نه استنجاء.

⇦ لکه څرنګه چې د قضاء حاجت په ادبونو کې تېر شول د بولو د کولو سره متصل بولې نه وچيږي نو ددې امله د په استنجاء کولو کې لږ ځنډ وکوي او فوراً دې استنجاء نه کوي او دومره صبر دې وکوي چې دده زړه پدې مطمئن شي چې نورې بولې به نه راځي دا کله په قدمونو اخستلو سره کيږي کله په غاړه تازه کولو سره او کله په لږ ساعت انتظار کولو سره او کله د ولاړې په حالت کې د يوې پښې په بله د اړولو او زور کولو سره .

⇦ د انسانانو په طبيعتونو کې فرق وي په څه ډول چې ده ته اطمنان ورغلو نو دهغې نه د وروسته ا ستنجاء وکوي .

⇦ که يو ځل د زړه د اطمنان څخه وروسته شيطان بيا بيا ورته وسوسه ور اچوله نو دهغه پروا د نه کوي خپل اودس د مخکې بوزي .

⇦ هغه کس چې بيمار وي او اودس بل څوک ورته کوي نو استنجاء له ده څه ساقطه کيږي بل څوک د ده ته استنجاء نه ورکوي .

په لاندې شیانو باندې استنجاء مکروه ده .

- په هډوکي او په پرېشنو (د خره آس او قچر په ګندګي) باندې له استنجاء کولو څخه منع شوېده په حدیث کې دي چې په هډوکي به استنجاء نه کوئ دا ستاسې د ورونړو پېریانو خوراک دی پدې باندې هغوی ته نوره غوښه را پیدا کیږي او هغوی یې ورڅخه خوري او پرېشنه د هغوی د حیواناتو د خوراک لپاره ترېنه خوراکه جوړیږي .
- په هغه شیانو باندې استنجاء کول منع شوي چې کوم د انسان یا د حیوان د خوړلو لپاره وي ځکه دا د نعمتونو اهانت او اسراف هم دی .
- په پخه خښته استنجاء مکروه ده ځکه هغه کلکه وي صفایي نشي را وستلی او انسان ته تکلیف هم ورکوي .
- په کودوړي (د منګي یا د بل خاورین لوښي په ټوټو) استنجاء کول مکروه دي ځکه پدې هم صفایي نه راځي او د لاسونو د ګنده کېدلو خطر وي .

په سکرو باندې استنجاء مکروه ده ځکه دا هم د نظافت په ځای انسان نور هم ګنده کوي .

⇦ په شيشه او دېته ورته په تېرو شيانو استنجاء کول مکروه دي ځکه هغه انسان پرې کولی هم شي چې د تکليف لامل ګرځي .

⇦ په محترم د قدر وړ شي باندې هم استنجاء کول مکروه دي لکه د ورېښمو ټوټه او داسې نور ځکه پدې کې مالي نقصان دی او اسراف دی .

⇦ ترڅو چې ضرورت نه وي په ښي لاس باندې استنجاء کول مکروه دي رسول الله ﷺ ورڅخه منع کړېده .

# اودس

داوداسه فضائل :

د اوداسه فضائل ډېر زيات دي زه يې صرف مثال ته ستاسې پام را ګرځوم.

⇦ اودس يو ډول پاکي ده او الله ① فرمايي الله ① هغه کسان خوښوي چې هغه ځان ښه پاکوي او د حضرت ابي ما لک اشعري ❽ په حديث کې پاکي ته د ايمان برخه ويل شوې ده

⇦ د حضرت ابي هريره ❽ په حديث کې دي چې رسول الله ﷺ فرمايل : زه تاسې ته داسې څه ونه ښيم چې الله ① په هغو سره ګناهونه پاکوي او درجې پرې لوړې کوي؟ صحابه وو ورته وويل : هو

راته ویې ښایه یا رسول الله ﷺ رسول الله ﷺ ورته وویل : د تکلیف په وخت کې ښه اودس کول ، جوماته ته زیات قدمونه اخستل، د یو مانځه نه وروسته بل مانځه ته انتظار وېستل.

## اودس د ګناهونو د بښلو سبب کیږي .

د حضرت ابي هریره ؓ په حدیث کې دي رسول الله ﷺ فرمایي : کله چې مسلمان بنده اودس کوي او مخ وینځي کله یې چې له مخ نه اوبه بېرته جدا کیږي ټول ګناهونه د مخ ورسره پاکیږي او کله چې لاس وینځي نو ټول هغه ګناهونه ترې پاک شي چې ده په لاسونو سره کړې وي کله چې پښې وینځې نو ټول هغه ګناهونه ترې پاک شي چې ده په پښو سره کړې وي تردې چې د اودس نه د فارغ کېدلو سره له ګناهونو څخه پاک شي .

## د قیامت په ورځ به مسلمان د اوداسه له امله ښکاره کیږي .

حضرت ابو هریره ؓ فرمایي ما مې له خپل دوست (رسول الله ﷺ) څخه آورېدلي دي هغه فرمایل : د قیامت په ورځ به د انسان دهغه اندامونو څخه رڼا پورته کیږي چې کوم یې په اوداسه کې وینځلي وو .

په اوداسه سره الله ① انسان جنت ته داخلوي .

د عقبة بن عامر ❽ په حديث کې رسول الله ﷺ فرمايي : چاچې په ښه توګه اودس وکولو بيا يې دوه رکعته مونځ وکولو او په هغه مانځه کې په پوره توګه خپل مخ او زړه الله ① ته واړوي نو الله ① به يې جنت ته ننباسي .

## د اوداسه سنت طريقه

د اوداسه لاندينى سنت طريقه په صحيح بخاري مسلم او نسائي کې د عبد الله بن زيد بن عاصم ❽ په روايت سره نقل شوېده .

- د اودس کولو په وخت به قبلې ته مخامخ په لوړ ځاى د اوداسه لپاره کينې
- بسم الله به ووايې او خپل لاسونه به درى ځله تر مړوندونو پورې ووينځې .
- بيا به د يو څه وخت لپاره مسواک په خوله کې ووهې .
- په خوله به درى ځله اوبه تېرې کړې که روژه د نه وه غرغره به يې هم وکوې .
- په پوزه به درى ځله اوبه تېرې کړې که روژه د نه وه اوبه پورته کش کړې چې په پوزه کې اوبه پورته لاړې شي په چپ لاس به پوزه پاکه کړې .
- درى ځله به مخ ووينځې .

- درى ځله به ښى لاس تر څنګلې پورې د څنګل په شمول بيا چپ لاس په همدې ډول ووينځې .

- د دواړو لاسونو ګوتې به يو په بل کې ورکړې چې د ګوتو خلال ورسره وشي .که په ګوته کې دې ګوتمه وي هغه به و ښوروې ترڅو تر پنه لاندې ځاى وچ پاتې نه شي .

- د ټول سر مسح به وکوې .

- د غوږونو مسح به وکوې

- بيا به درى ځله ښى پښه تر ښنګري پورې د ښنګري په شمول بيا چپه پښه په همدې ډول ووينځې .

- د ښى پښې د ګوتو خلال به د ښي لاس د وړې ګوتې په واسطه وکوې او د چپې پښې د ګوتو خلال به د چپ لاس د وړې ګوتې په واسطه وکوې په آخر کې به په چپ لاس اوبه تېرې کړې پدې سره به ستا اودس پوره شي .

اودس په درى ډوله دى

۱. فرض

دا دهغه کس اودس دى چې اودس يې نه وي او مونځ کول غواړي نو اودس کول ورته فرض دي .

۳. سنت

دا دهغه کس اودس دى چې طواف وداع کول غواړي، يا څوک جنب وي د جنابت په حالت کې ويده کېدل غواړي ، يا د چا اودس نه وي اوس تلاوت کول غواړي صرف د تلاوت لپاره اودس کوي.

۳. واجب

دا دهغه کس اودس دى چې اودس يې نه وي طواف کول غواړي نو له اوداسه نه وړاندې په ده واجب ده چې اودس وکوي .

٤. مستحب

دا دهغه کس اودس دی چې صرف ددې لپاره اودس کول غواړي چې باید هر وخت په اوداسه وي او یا د خوب نه وړاندې اودس کول غواړي چې په اوداسه سره ویده شي.

## د اوداسه فرضونه

الله ﷻ فرمايي: سورة مائدة آية ١٦

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ إِذَا قُمْتُمْ إِلَى الصَّلاةِ فاغْسِلُواْ وُجُوهَكُمْ وَأَيْدِيَكُمْ إِلَى الْمَرَافِقِ وَامْسَحُواْ بِرُؤُوسِكُمْ وَأَرْجُلَكُمْ إِلَى الْكَعْبَينِ وَإِن كُنتُمْ جُنُبًا فَاطَّهَّرُواْ وَإِن كُنتُم مَّرْضَى أَوْ عَلَى سَفَرٍ أَوْ جَاء أَحَدٌ مَّنكُم مِّنَ الْغَائِطِ أَوْ لاَمَسْتُمُ النِّسَاء فَلَمْ تَجِدُواْ مَاء فَتَيَمَّمُواْ صَعِيدًا طَيِّبًا فَامْسَحُواْ بِوُجُوهِكُمْ وَأَيْدِيكُم مِّنْهُ مَا يُرِيدُ اللّهُ لِيَجْعَلَ عَلَيْكُم مِّنْ حَرَجٍ وَلَـكِن يُرِيدُ لِيُطَهَّرَكُمْ وَلِيُتِمَّ نِعْمَتَهُ عَلَيْكُمْ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ

ترجمه: ای مؤمنانو! کله چې تاسې مانځه ته پاڅېدئ نو خپل مخونه ووینځئ او خپل لاسونه ووینځئ تر څنګلو پورې په سرونو باندې مسح وکوئ او خپلې پښې ووینځئ تر ښګریو پورې او که تاسې د جنابت په حالت کې وئ نو بیا ځان ښه پاک کړئ او که تاسې بیماران وی او یا په سفر باندې وئ بیا تاسې ته د اودس یا غسل ضرورت شو نو په پاکه خاوره باندې تیمم وکوئ په هغې باندې خپل مخونه او لاسونه مسح کړئ الله ﷻ نه غواړي چې په تاسې باندې سختي راولي بلکه الله ﷻ

غواړي چې تاسې پاک کړي او خپل نعمت په تاسې باندې پوره کړه ښايي چې تاسې شکر وباسئ .

نو د پورتني آيت له مخې د اوداسه فرضونه څلور دي :

١. د مخ وينځل

٢. د لاسونو وينځل

٣. د سر مسح

٤. د پښو وينځل

## ١. د مخ وينځل يو ځل

⇦ وينځل دېته وايي چې په کوم شي باندې اوبه و بهول شي او مسح دېته وايي چې کوم شي ته صرف اوبه ور ورسول شي .

⇦ نو په کوم ځای کې چې وينځل ضروري وي نو لږ تر لږه دومره اوبه پرې اچول ضروري وي چې ترينه و څاڅيږي او بېرته ترې لاړې شي .

د مخ حدونه :

⇦ مخ له هغه ځای نه شروع کيږي چېرته چې د تندي لپاسه د سر وېښته شروع کيږي او تر زنې لاندې ختميږي او په عرض کې د يوه غوږ له بېخ

نه د بل غوړ تر بېخ پورې مخ دى او ددې وینځل فرض دي .

مسئلې :

⇦ د سترګو د ننه اوبه ور ننه ایستل ضروري نه دي .

⇦ مخ ته د اوبو اچولو په وخت سترګې کلکې پټول مکروه دي .

⇦ که سترګې دومره کلکې پټې کړل شي چې بهرنۍ پوستکی هم وچ پاتې شي نو اودس نه کیږي ترڅو هغه بهرنۍ پوستکی لوند نه کړل شي .

⇦ کله چې خوله په عادي توګه بنده کړل شي نو کومه شونډه چې ښکاره کیږي هغه د مخ برخه ده او کومه چې نه ښکاره کیږي هغه د خولې برخه ده (نور الایضاح).

⇦ د ږیرې کوم وېښته چې د مخ له دائرې ښکته ځړیدلې دي اوبه ورته رسول ضروري نه دي (نور الایضاح) .

⇦ که ږیره ږنګۍ وي چې د وېښتانو بیخونه ترېنه ښکاره کېدل نو بیا یې بیخونه لندول ضروري دي .

⇦ کله چې ږیره ګڼه وي نو په وېښتانو یې چې اوبه تیرې کړل شي صحیح ده .

⇦ له اوداسه نه وروسته په برېتونو خرېلو اودس نه ماتيږي (عالمګيري)

## ۲. ترڅنګلو پورې د لاسونو وينځل

تر څنګلو پورې لاسونه وينځل هم فرض دي.

مسئلې:

⇦ د لاسونو په وينځلو کې څنګل هم داخله ده .

⇦ که د چا د لاس سره له اوږې نه بل اضافي لاس وي نو په کوم لاس چې کار کوي هماغه يې اصلي لاس دی د اضافي لاس وينځل ضروري نه دي البته مستحب دي او که صرف يوه ګوته يا د لاس پنجې يې دوه وي نو بيا دهغې وينځل ضروري دي .

⇦ که د اوداسه په وخت کې په نوکونو کې خيرى وو نو اودس ورسره کيږي .

⇦ که په نوکونو کې داسې کوم شی وو چې د نوکونو بيخ ته اوبه نه ور پرېږدي نو بيا اودس ورسره نه کيږي د مثال په توګه لکه اوړه نو دهغو سره به خواري وکوي ترڅو يقيني شي چې د نوک بېخ ته اوبه ورسېدې .

⇦ که ګوتمه ازاده وي د اوداسه په وخت کې يې ښورول سنت دي او که تنګه وه چې ترې لاندې ځای ته اوبه نه رسېدلې نو بيا يې ښورول فرض دي (نور الايضاح).

### ۳. د پښو وینځل

په اوداسه کې پښې وینځل هم فرض دي ترڅو چې ونه وینځل شي اودس نه کیږي .

مسئلې :

- شنګرى (د پوندې لپاسه را وتلى هډوکى) په پښه کې داخل دى د هغه وینځل هم ضروري دي .
- که پښه تر شنګري شکته او یا لاس تر څنګل شکته پرې شوې وي نو چې څومره پاتې وي د هغې وینځل فرض دي .
- که پښه تر شنګري پورته او یا لاس تر څنګل پورته پرې شوې وي نو هغه پاتې برخه وینځل اوس فرض نه دي .
- که له وینځلو مخکې پښې غوړې کړل شوې وې او اوبه ورباندې واچول شوې اودس ورسره کیږي اګر که د پښو څرمن لنده نه شوه (الذخيرة)
- که په پښه کې چاوده وي او په هغه کې دوا کېښودل شوې وي نو که اوبه ورته تاوان نه کوي نو بیخ ته یې اوبه رسول ضروري دي او که تاوان ورته کوي نو بیا د پاسه ورباندې اوبه اچول هم کفایت کوي (المحیط)
- که په بدن کې په کوم ځاى کې تکلیف وي او وینځل یې سخت وي نو صرف اوبه دې پرې واچوي

او که د اوبو اچول هم سخت وو نو صرف مسح د وربانديږ وکوي او که مسح کول هم وربانديږ سخت وو نوچې کومه ساحه جوړه وي هغه د وويني او د تکليف ځای دې پريږدي .

⇦ که په بدن باندې تناکه راختلې وه او دهغې د پاسه اوبه و بهول شوې او ترې لاندې ورنغلې نو اودس کيږي .

⇦ که په بدن باندې اضافي کوم شی سريښ وو چې ا وبه څرمن ته نه پريږدي لکه د لابرتيف ټوټه يا د ماهي پوستکی او داسې نور نو بيا اودس ورسره نه کيږي .

⇦ که د اوداسه نه وروسته لږ ځای وچ پاتې شوی وو او بدن تر اوسه وچ شوی نه وو نو د همدې بدن د لوند والي نه يې هغه وچ ځای لوند کړو اودس صحيح دی .

⇦ که د بل اندام له لوند والي نه يې هغه وچ ځای لوند کړو اودس نه دی صحيح په غسل کې که وچ ځای پاتې وو د بل اندام نه که اوبه څڅېدلې نو دهغه اندام نه يې هم لندول صحيح دي .

## ٤. د سر مسح

د سر د څلورمې برخې مسح کول هم فرض دي .

مسئلې:

⇦ د سر په مسح کې به د لاس درې ګوتې خامخا استعمالوي (الکفاية)

که په دوه ګوتو يا يوه ګوته سره يې سر مسح کړو نه ده صحيح (شرح الطحاوي)

⇦ که په سبابه (د شهادت ګوته) او ابهامه (بټه ګوته) باندې مسح کوله او د ګوتو مينځ يې هم په سر لګېدلو نو بيا مسح صحيح ده ځکه پاتې لاس هم د يوې ګوتې په ځای درېدلی شي (فتاوای قاضي خان)

⇦ که سر يې د ګوتو په سرونو سره مسح کړو که د ګوتو د سرونو څخه يې اوبه څڅېدلې نو مسح روا ده او کنه نو بيا نه ده روا (الذخيرة)

⇦ که د مخ سره يې سر هم د مسح په ځای ووينځلو نو د مسح ځای نيسي لکن مکروه دی ځکه دا هغه څه دي چې امر ورباندې نه دی شوی (المحيط)

⇦ مسح د خولۍ، پټکي يا ټکري د پاسه نه ده روا.

⇦ که د ټکري يا خولۍ لپاسه يې داسې مسح وکوله چې اوبه ترينه ويښتو ته ورسېدې نو بيا صحيح ده.

⇦ که د کوم اندام په وينځلو کې يې د اوداسه په وخت يا تر اوداسه وروسته شک شو چې آيا

ومې وينځلو او که را نه پاتې شو يا مې مسح وربانديې وکوله او که پاتې شوه نو که دا شک د لمړي ځل لپاره وو نو اودس د بيا وکوي او که دا شک هروخت ورته راتلو نو پروا دې وربانديې نه کوي (رد المحتار)

⇦ که د اوداسه په اندامونو بانديې زخم وي نو هغه د زخم ځای د نه وينځي صرف لوند لاس د وربانديې را کش کړي او مسح د پرې وکوي او که مسح هم ورته تاوان کولو نو بيا دې هغه ځای بالکل پرېږدي .

# د اوداسه سنتونه

په اودس کې لاندې کارونه سنت دي :

١. نيت کول

٢. تر اوداسه وړاندې بسم الله ويل

٣. تر مړوندونو پورې لاسونه وينځل.

٤. په خوله او پوزه اوبه تېرول.

٥. مسواک وهل .

٦. د ږيرې خلال کول .

٧. د ګوتو خلال .

٨. هر اندام درې ځله وينځل .

٩. د ټول سر مسح

١٠. د غوږونو مسح

١١. ترتيب

١٢. اندامونه پر له پسې وينځل

١٣. په غبرګو اندامونو کې د ښي طرف په وينځلو شروع کول .

١٤. په لاسونو او پښو وينځلو کې د ګوتو له سرونو شروع کول .

١٥. په خوله او په پوزه په اوبو تېرولو کې ښه کوښښ کول .

۱. نیت کول

د اوداسه لپاره نیت کول سنت دي چې په زړه کې یې دا وي چې زه اوس د داسې کار لپاره تیاري کوم چې هغه بغیر د اوداسه څخه نه صحیح کیږي او یا زه غواړم چې بې اودسي له ځان څخه لرې کړم (عالمګیري)

د اوداسه لپاره به نیت په زړه کې کوي که په خوله باندې ورسره تلفظ وکوي نو مستحب دی .

که په خوله نیت کول غواړي نو داسې به وایې ( نویت رفع الحدث) د ځان نه د بې اودسي د پورته کولو نیت مې کړی دی .

## ۲. تر اوداسه وړاندې بسم الله ويل

⇦ رسول الله ﷺ فرمايي :څوک چې اودس وکوي او بسم الله ووايي هغه ټول پاکيږي او هغه څوک چې بسم الله ونه وايي صرف هغه ځايونه پاکيږي چې کوم ځايونه وينځل شي .

⇦ دا بسم الله ويل خامخا تر اوداسه وړاندې ويل سنت دي که چېرته هېره شي نو دا سنت پاتې شو داسې نه ده لکه د خوراک نه وړاندې بسم الله ويل سنت دي لکن که هېره وه چې په مينځ کې په زړه شوه بيا يې هم په ويلو سنت اداء کيږي لکن بيا هم چې هر وخت اودس کونکي ته ور په زړه شي نو ودې وايي (السراج الوهاج)

⇦ که جامې يې وېستلې وې او يا په داسې ځاى کې وو چې شاوخوا ته ئې ګندګي وه نو بيا به په ژبه بسم الله نه وايي (فتح القدير)

⇦ تر استنجا وړاندې او تر استنجا وروسته بسم الله ويل سنت دي (الهداية)

## ۳. تر مړوندونو پورې لاسونه وینځل

⇦ د اوداسه په شروع کې دواړه لاسونه تر مړوندونو پورې وینځل سنت دي

رسول الله ﷺ فرمايي : څوک چې د خوب نه را ویښ شي خپل لاسونه دې تر هغه وخته پورې په کوم لوښي که نه غوټه کوي ترڅو یې چې درې ځله وینځلې نه وي (صحیح مسلم)

⇦ که چېرته یې کولی شول چې دواړه لاسونه په یوځای وویځي لکه د نلکې نه اودس کول یا بل لوښي نه وو نو ښه خبره ده او کنه نو بیا دې اول یو لاس وویځي او په بل د اوبه ور واچوي او بیا بل په همدې ډول .

⇦ لاسونه وینځل ورانده تر استنجاء هم سنت دي او وروسته تر استنجاء هم سنت دي (فتاوای قاضي خان)

## ٤. په خوله او پوزه اوبه تېرول

⇦ په خوله او پوزه باندې درې ځله اوبه تېرول سنت دي

د رسول الله ﷺ چې کوم اودس نقل شوی دی په هغه کې نقل شوي دي چې رسول الله ﷺ درې ځله په خوله

او درى ځله په پوزه اوبه تېرې کړې او د هر ځل لپاره يې نوې اوبه را واخيستلې .

⇦ اول به په خوله باندې درى ځله اوبه تېرې کړي بيا به په پوزه باندې او د هر ځل لپاره به تازه اوبه را اخلي (محيط السرخسي)

⇦ خولې ته به دومره اوبه اچوي چې د خولې ټولو طرفونو ته ورسيږي .

⇦ که په لپه کې يې ډېرې اوبه واخستې او درى ځله يې خوله ترې ډکه کړه او په خوله يې تېرې کړې نو کيږي او د يو ځل اوبو څخه په پوزه درى ځله نه تېرول کيږي ځکه د پوزې نه بېرته استعمال شوې اوبه پکې تويېږي (السراج الوهاج)

## ٥. مسواک وهل

⇦ مسواک وهل هم د اوداسه له سنتونو څخه دي او دا په کار ده چې د ونې څخه وي ګوته د مسواک سنت نشي اداء کولی .

⇦ د مسواک په اړه رسول الله ﷺ فرمايي هغه دوه رکعتونه چې د مسواک نه وروسته وکول شي له هغه اويا رکعتونو څخه غوره دي چې له مسواک نه بغير وکول شي .

- د مسواک په ښي لاس کې نیول مستحب دي چې غچه (وړوکې) ګوته یې تر بېخ او بته (لویه) ګوته یې تر سر لاندې کړل شي او نورې ګوتې ورباندې لپاسه کړل شي (النهر الفائق)

- په اوداسه کې د مسواک وخت په خوله د اوبو د تېرولو وخت دی په خوله کې به د ښي طرف غاښونو څخه شروع کوي او په شکته پورته غاښونو به یې عرضاً او طولاً وهي (الجوهرة النيرة)

- که له مسواک نه د چا زړه خرابیږي نو بیا یې د نه وهي .

- په تکیه سره مسواک وهل د سنتو نه خلاف دي (عالمګیري)

- امام ابن قیم رحمه الله په مختصر ډول د مسواک څو فایدې بیانوي ستاسې پام ورته را ګرځوم

هغه فرمايي د مسواک د استعمال سره :

د خولې پاکي راځي

زامه ورسره کلکه کیږي .

بلغم ختمیږي

نظر تیزیږي

د معدې بیماریانې ورسره ورکیږي .

آوازصفا کیږي

د خوراک هضم ښه کیږي

په تلاوت کې د مخارجو په سمه توګه اداء کول اسانیږي.

انسان د تلاوت ذکر او مانځه لپاره تازه کیږي .

خوب او سستي له انسان نه لرې کیږي

حضرت عائشة رضی الله تعالی عنها فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل : په مسواک سره خوله پاکیږي او الله ① وربانډې رضا کیږي .

په دنیا باندې اول مسواک حضرت ابراهیم ⌛ استعمال کړی دی رسول الله ﷺ فرمایلي دي : که زه نه ډاریدلی چې زما په امت به سخت شي نو ما به دوی ته امر کړی وو چې مسواک د د هر مانځه نه وړاندې استعمالوي .

## ٦. د ږيرې خلال

حضرت انس بن مالک ❽ فرمايي : رسول الله ﷺ به چې کله اودس کولو نو ږيره مبارکه به يې خلال کوله .

⇦ دا هم سنت دی او طريقه يې داده چې لاس به لوند کړي او تر زنه لاندې به د ننه خوا نه په ږيره کې ننباسي او پورته خواته به يې پکې کش کړي .

## ٧. د ګوتو خلال

⇦ رسول الله ﷺ فرمايي : څوک چې په اوداسه کې ګوتې خلال نه کړي نو الله ① به يې په اور خلال کړي .

⇦ دا هم سنت دی طريقه يې داده چې لاسونه به په اوبو باندې لانده کړي او د دواړو لاسونو ګوتې به يو له بل سره داسې ورکړي چې د يو لاس ګوتې د بل لاس د ګوتو په مينځونو کې ورشي.

⇦ که ګوتې سره داسې سريښ وې چې په عادي توګه ورته اوبه نه رسيږي بيا د ګوتو خلال واجب دی .

⇦ که د ګوتو د خلال په ځای لاس په اوبو کې ننه ايستل شي نو هم کفايت کوي .

⇦ د پښو د ګوتو خلال به د لاس په غچه (وړوکې) ګوته سره کوي او هغه به د پښو د ګوتو په مینځ کې را تېروي.

## ۸. هر اندام درې ځله وینځل.

⇦ د کومو اندامونو چې وینځل یو ځل فرض دي دهغې درې ځله وینځل سنت دي (المحیط)

⇦ کله چې په اوداسه کې اندامونه وینځل کیږي نو کوښښ به کیږي چې هر ځل ټول اندم ته اوبه ورسیږي.

⇦ که چېرته یو ځل په اندام اوبه واچول شي له هغه نه څه برخه پاتې شي اوبل ځل په هغه ځای لوندوالی ورشي نو دا دواړه ځله په یو ځل حسابیږي .

⇦ که د اوبو د کمښت له امله یا د سختې یخني له امله یا یې د کوم بل عذر له امله اندامونه یو ځل ووینځل نو بغیر د کراهیت نه صحیح دی (معراج الدرایة)

⇦ که د زړه د ښه تسکین لپاره یې تر دریو ځلو زیات ووینځي نو پروا نه لري .

## ۹. د ټول سر مسح

⇦ د سر د ځلورمې برخې مسح فرض ده او د ټول سر مسح سنت ده .

⇦ لاسونه به لانده کړي او خپلې درى درى ګوتې (بغير د غټې او د شهادت له ګوتې) او لاسونه به د تندي نه پاس کيږدي او شا ته به يې په داسې توګه کش کړي چې په ټول سر باندې لاسونه يا ګوتې ولګيږي (عالمګيري)

## ۱۰. د غوږونو مسح

⇦ د غوږونو مسح کول هم سنت دي

⇦ د سر له مسح نه چې دوه ګوتې پاتې کړل شوې وې هغه به اوس د غوږونو په مسح کې وکارول شي (عالمګيري)

⇦ که د غوږونو د مسح لپاره تازه اوبه را واخيستل شي نو ښه خبره ده (البحر الرائق)

⇦ د شهادت په ګوتو سره به د غوږونو د ننه او په غټو ګوتو سره به د غوږونو څټونه مسح کړي (السراج الوهاج)

## ۱۱. ترتیب

⇦ په هغه ترتیب به اندامونه وینځي په کوم ترتیب چې الله ① په قران کریم کې په هغه آیت کې یاد کړي دي چې د اوداسه په سر کې مونږ تېر کړو چې اول مخ بیا لاسونه تر څنګلو، بیا د سر مسح بیا پښې وینځل .

⇦ د صاحب الهدایة او صاحب القدوري په نظر نیت او ترتیب د مستحباتو له جملې نه دي .

## ۱۲. اندامونه پر له پسې وینځل

اندامونه په داسې ډول وینځل سنت دي چې یو نه وي وچ شوی بل ووینځل شي او د دوی په مینځ کې به ډېر وخت نه تېروي.

## ۱۳. په غبرګو اندامونو کې د ښي طرف په وینځلو شروع کول .

په ښي طرف شروع کول هم سنت دي رسول الله ﷺ فرمايي : کله چې اودس کوئ نو په ښي طرف شروع کوئ .

## ۱٤. په لاسونو او پښو وینځلو کې د ګوتو له سرونو شروع کول .

رسول الله ﷺ چې کله اودس کولو نو کله به یې چې پښې او لاسونه وینځل نو اول به یې ګوتې وینځلې او د ګوتو به یې هم اول سرونه وینځل بیا به یې لاس او پښې وینځلې .

## ۱۵. په خوله او په پوزه په اوبو تېرولو کې ښه کوښښ کول .

هغه کس چې روژه یې نه وي هغه به په خوله ابو تېرولو کې ښه کوښښ کوي چې غرغره ورسره وکوي او تر ممکن حده پورې ستونې ته هم اوبه ورسوي او په خوله کې یې هم ښې تېرې کړي همدارنګه په پوزه به اوبه پورته کش کوي ترڅو چې تر ممکن حد پورې پورته ورسیږي او هغه کسان چې روژه یې وي دا کار به نه کوي .

# د اوداسه ادبونه

لاندې شیان د اوداسه له ادبونو څخه دي

۱. اوداسه ته په لوړ ځای کېناستل

۲. بغیر د استنجاء نه په اوداسه کې قبلې ته مخ کول .

۳. په اوداسه کې له بل چا څخه مرسته نه غوښتل او ترڅو چې عذر نه وي پخپله خپل ځان ته اوبه ور اچول .

٤. خبرې نه کول .

٥. ترڅو چې کېدای شي په پاک ځای کې اودس کول

٦. د هر اندام د وینځلو په وخت کې بسم الله ویل او په خوله باندې د اوبو تېرولو په وخت په زړه کې بسم الله ویل.

۷. پوزې او خولې ته په ښي لاس اوبه اچول .

۸. پوزه په چپ لاس پاکول .

۹. د مانځه وخت له داخلېدلو وړاندې اودس کول.

۱۰. د اوداسه نه وروسته اشهد ان لا اله الا الله و اشهد ان محمداً عبده و رسوله ویل .

۱۱. د اوداسه نه د پاتې اوبو څخه لږ تر لږه یو غړپ څښل .

۱۲. په هغه اوبو اودس نه کول چې راساً په لمر سره ګرمې شوې وي ځکه ددېنه د پیس بیماري پیدا کیږي .

۱۳. د خپل ځان لپاره یو خاص لوښی نه خاص کول چې د بل چا لپاره وربانديې د اوداسه کولو اجازه نه وي .

۱٤. په مخ او نورو اندامونو باندې د نرمي سره اوبه اچول او مخ په اوبو نه ویشتل .

۱۵. په اوبو کې اسراف نه کول .

۱٦. ترڅو چې د اوبو کمښت نه وي نو په اوبو کې سختي نه کول .

۱۷. د اوداسه نه وروسته د اوداسه لوښی بېرته د بل چا یا د بل ځل اوداسه لپاره ډکول .

۱۸. تر اوداسه وروسته خپل لاس نه څنډل .

۱۹. اودس ورو او په اطمنان سره کول .

# د اوداسه مکروهات

داپورتني د اوداسه ادبونه دي او ددې نه مخالفت مکروه دی نو څومره چې ادبونه دي د هغو اکثرو ضد يې مکروه دی د مثال په توګه په داسې ځای کې اوداسه ته کېناستل چې اوبه لتا څخه نه لرې کيږي ، بغير د ضرورت نه قبلې ته مخ نه اړول، بغير د ضرورت نه له بل چا څخه مرسته اخستل ، په اوداسه کې خبرې کول ، خولې او پوزې ته په چپ لاس اوبه اچول، پوزه په ښي لاس پاکول ، د ځان لپاره يو خاص لوښی معين کول چې بل چاته ور باندې د اوداسه کولو اجازه نه وي ، مخ په اوبو سره په زوره ويشتل ، په اوبو کې اسراف کول يا پکې د ضرورت نه بغير سختي کول او داسې نور .



# د اوداسه ماتونکي شیان

## ۱. هر هغه شی چې د انسان د مخ او شا خاصو اندامونو څخه وزي.

هغه شی چې د انسان د مخې طرف نه وزي په څلور ډوله دي :

الف . مني : هغه اوبه دي چې په شهوت سره د انسان څخه وزي د نارینه مني په رنګ کې سپین او زنانه په رنګ کې زیړ وي په وتلو یې غسل واجب کیږي .

ب . مذي : هغه اوبه دي چې وتل یې نه محسوس کیږي لکن د شهوت په وخت کې وزي .

ج . ودي : دا ټینګه ماده وي کله د بولو نه وړاندې او کله وروسته وزي او کله د کوم درانده شي د پورته کولو په وخت کې هم وزي .

د. بولې : په عادي حالت کې د انسان یې ویستلو ته ضرورت کیږي .

پدې څلورو شیانو کې د اول په وتلو غسل واجبیږي او د پاتې نورو شیانو په وتلو صرف اودس ماتیږي .

⇦ او هغه شیان چې د انسان د شا طرف نه وزي که باد وي، که ګندګي او یا که په غیر عادي توګه د کوم چینجي وتل وي ټول اودس ماتوي .

⇦ همدارنګه که د انسان نه د څه بیماري په نتیجه کې د مخې نه چینجی یا دېته ورته شی را وزي نو اودس ماتوي .

## ۲. هره هغه شی چې له کوم زخم نه وزي

⇦ کوم شی چې له زخم نه وزي او و بهیږي له زخم نه بل ځای ته لاړ شي اودس ماتوي

⇦ که صرف په زخم باندې وینه را ښکاره شي او ونه بهیږي اودس نه ماتوي .

⇦ که په غوږ یا پوزه کې یې دوا واچوله څه ساعت وروسته هغه را ووتله نو اودس نه ماتوي (عالمګیري)

⇦ همدارنګه که د لمبېدلو په وخت کې په غوږ کې اوبه ننوزي بېرته له غوږ نه یا له پوزې نه را ووزي نو اودس وربانديې نه ماتیږي .

⇦ که په غوږ کې ننوتلې اوبه د ډیر وخت لپاره د ننه پاتې شي او بېرته چې را وزي لکه زوه داسې وي نو بیا اودس ماتوي (المضمرات)

⇦ که د غوږ نه لوندوالی را وزي نو که د درد نه بغیر وي اودس ورسره نه ماتیږي او که درد یې وکولو بیا کوم شی ترې را ووتل نو اودس څکه ماتوي چې ښکاره کیږي چې د زخم نه راوتلی دی (المحیط)

⇦ که په خوله کې وینه را پیدا شي او انسان یې تف کړي که تر ناړو څخه کمه وه اودس نه ماتوي که چېرته د ناړو سره برابره وه یا زیاته وه نو اودس مات دی او دا اندازه به یې له رنګ نه معلومیږي که رنګ یې زیړ وو نو بیا تر ناړو کمه ده او که رنګ یې سور وو نو بیا ورڅخه زیاته او یا ورسره برابره ده (التبیین)

⇦ که په سترګه کې کومه دانه وي هغه وچوي ترڅو چې دهغې نه زوې او نور شیان تر سترګه بیرون نه دي راوتلي نو اودس وربانډې نه ماتیږي .

⇦ که په زخم کې لوند والی وي چې په زخم ولاړ وي بهېدونکی نه وي که د جامو سره ولګیږي نو اودس وربانډې نه ماتیږي او نه ورسره جامه ګنده کیږي او که له زخم نه و بهیږي بیا په جامه ولګیږي جامه هم نجسه کوي او اودس هم ورسره ماتیږي (عزیز الفتاوی)

⇦ که له کوم زخم نه وینه وتله او په هغه باندې خاوره یا بل شی اچول کېدل چې هغه وینه یې وچوله تکراراً یې دا عمل ورسره کولو دده په ګمان که ده دا وینه پرېښې وای نو بهېدلې به وه بیا هم اودس ماتیږي (فتاوی قاضي خان)

۳. قی کول

⇦ کله چې په ډکه خوله سره قی وشي اودس ماتوي که هرشی قی کړل شي که خوراک وي که اوبه او که هرشی وي .

⇦ په قی کې ډکه خوله دا معنی چې په اسانه سره يې په خوله کې نشي حصارولی .

⇦ که چا اوبه و څښلې او فوراً يې قی کړې لکن په ډکه خوله وې بيا هم اودس ماتوي (السراج الوهاج)

⇦ که لږ لږ قی يې وکولو چې سره ټول يې کړې دومره کيږي چې که په يو ځای يې کړی وی نو خوله يې ډکوله او ددې ټول قی سبب يو وو نو بيا هم اودس ماتوي (المضمرات)

⇦ هغه قی چې لږ وي نو اودس وربانې نه ماتيږي هغه بيا نجس هم نه وي که په جامه ولګيږي مونځ ورسره کيږي (عالمګيري)

٤. ويده کېدل

⇦ هغه خوب چې په ملاسته وي يا د تکيې سره وي که په مانځه کې وي يا له مانځه نه بغير وي په اتفاق سره اودس ماتوي .

⇦ که یې کوم شي ته داسې تکیه کړې وه چې هغه تکیه ترې لرې شي دی غورځیږي نو دا خوب اودس ماتوي .

⇦ که ځوک په ولاړه ویده وي نو اودس یې نه ماتیږي همدارنګه که په مانځه کې د رکوع په حالت کې ځوک ویده وي یا د سجدې په حالت کې ویده وي او د ویده کېدلو سره سره بیا هم ونه غورځیږي نو دا خوب اودس نه ماتوي .

⇦ د مانځه نه بغیر که ځوک په سجده پروت وي او سجده یې د نارینه وو د سنت سجدې سره برابره وي چې ګېډه او زنګنونه سره لرې وي نو بیا اودس نه دی مات او که اندامونه یې یو له بل سره لګېدلې وي نو بیا اودس مات دی .

⇦ که ځوک په ناسته ویده وي او کله کله دومره کوږ هم شي چې مقعد یې له زمکې نه لرې کیږي بیا یې هم اودس نه ماتیږي (فتاوی قاضي خان)

⇦ که ځوک په ناسته ویده وي او وغورځیږي که په زمکه له لګېدو وړاندې را ویښ شو اودس یې نه دی مات او که د لوېدو وروسته را ویښ شو بیا یې اوداس مات دی (عالمګیري)

⇦ که چا تکیه کړې وي او داسې خوب یې یوسي چې د خلکو خبرې نه اوري نو اودس یې مات شو او

که داسې خوب یې یوسي چې لا د خلکو خبرې یې آورېدلې نو بیا اودس نه دی مات ( المحیط)

## ٥. بې هوښه کېدل لېونتوب واقع کېدل

⇦ بې هوښي که د لږ ساعت لپاره وي او که د ډېر وخت لپاره اودس ماتوي .

همدارنګه لېونتوب دی .

⇦ د همدې برخې نه نشه هم ده چې څوک دومره نشه شي چې نارینه او ښځینه سره بېل نشي کړی داسې نشه هم اودس ماتوي .

⇦ د حضرت شمس الایمة الحلواني رحمه الله له نظره چې انسان دومره نشه شي چې په حرکاتو کې یې بې اختیاره حرکات پیدا شي دا هم اودس ماتوي .

## ٦. په مانځه کې په زوره خندا

⇦ په کوم مانځه کې چې رکوع او سجده وي په هغه مانځه کې په زوره خندا اودس ماتوي (المحیط) .

خندا په درې ډوله ده :

تبسم : هغه خندا ده چې صرف غاښونه پکې ښکاره شي آوازورسره نه وي پدې سره نه مونځ او نه اودس خرابيږي .

ضحک : هغه خندا ده چې صرف انسان يې پخپله واوري پدې سره مونځ ماتيږي او اودس وربانديې نه ماتيږي .

قهقهه : هغه خندا ده چې په خواکې که بل څوک وي هغه يې هم واوريدلی شي پدې سره مونځ هم ماتيږي او اودس ورسره هم ماتيږي .

⇦ په خندا کې قصداً او سهواً يو شی دی که هر ډول يې وخندل اودس ماتوي .

⇦ خندا چې له مانځه نه بهر وي په هيڅ ډول اودس نه ماتوي .

⇦ که په زوره خندا په سجده تلاوت کې وشي او يا د جنازې په مانځه کې وي صرف مونځ او سجده ماتوي اودس ورسره نه ماتيږي .

⇦ که ماشوم په مانځه کې په زوره وخاندي د هغه اودس وربانديې نه ماتيږي (المحيط)

## ٧ . مباشرة فاحشة

مباشرة فاحشة دېته وايي چې بغير د جامې او يا داسې پردې نه چې د بدن حرارت منع کړي د نارينه خاص اندام د زنانه د خاص اندام سره

ولګیږي پداسې حالت کې اکثر که مذي را وزي لکن که هغه را ونه وزي هم اودس ورسره ماتیږي .

## معذورین

- هغه کس چې له کوم ځای نه یې روانه وینه بهیږي ، یا د کومې بیماري له امله هغه د خپلې معدې باد نشي ساتلی او هغه په خپله وزي ، یا د بولو تکلیف وي ورته او ځاځکی ځاکی ترینه هر وخت بهیږي او دومره وخت وقفه پکې نه راځي چې دا شخص مانځه کولو ته خلاص شي نو دې کس ته معذور ویل کیږي دده په حق کې حکم دادی چې دی به هر مانځه ته نوی اودس کوي ترڅو چې هغه وخت وي دده اودس په هغه شي نه ماتیږي د کوم له مله چې دی معذور ګڼل شوی دی کله چې دا وخت تېر شي نودی به بیا اودس کوي .
- که داسې معذور کس سحر وختي اودس وکوي نو چې کله لمر را وخیږي نو دده اودس ماتیږي که د لمر د ختلو نه وروسته مونځ کول غواړي اودس به ورته تازه کوي همدارنګه پدې اوداسه بیا د ماسپښین مونځ نشي کولی ترڅو ا ودس ورته ونه کوي .
- که دا د عذر وینه په جامه ولګېده که دا یقین وو چې که دا وینه وویندځل شي نو د

مانځه د پوره کولو نه مخکې بېرته نوره وينه وربانديږ لګيږي نو وينځل يې ضروري نه دي د هغه وينې سره به مونځ کوي او که چېرته ګمان کېدو چې د بل ځل وينې لګېدلې نه وړاندې به مونځ ختم وي نو بيا دې دا وينه له جامو څخه وويځي (الشامي)

د اوداسه په وخت کې دعا ګانې :

⇦ رسول الله ﷺ فرمايي څوک چې د اوداسه په وخت کې الله ياد کړي د هغه ټول بدن پاک شي او هغه چې الله ياد نه کړي صرف هغه ځايونه پاک شي چې کوم وويځل شي علماوو د اوداسه په وخت کې د اندامونو د وينځلو په وخت د دعا ګانو په اړه توصيه کوي لکه عالمګيري او داسې نورو کتابونو چې نقل کړي دي ستاسې په مخ کې يې ددې لپاره ايږدم که يې څوک يادولی شي ويل يې د زيات ثواب لا مل ګرځي او که چاته يادې نه وي نو په نه ويلو يې اودس نه خرابيږي .

⇦ **تر اوداسه وړاندې صرف بسم الله او يا دا ټوله دعا ويل سنت دي :**

بسم الله الرحمن الرحيم، ( رب أعوذ بك من همزات الشياطين، وأعوذ بك رب أن يحضرون )

⇦ **د لاسونو د وينځلو په وخت :**

اللهم إني أسألك اليُمنَ والبركة، وأعوذ بك من الشؤم والهَلَكة .

⇦ **په خوله د اوبو تېرولو په وخت :**

اللهم أعني على تلاوة القرآن و ذكرک و شكرک وحسن عبادتک .

⇦ **په پوزه د اوبو تېرولو نه مخکې به وايي :**

اللهم أرحني رائحة الجنة ولا ترحني رائحة النار.

⇦ **د مخ وينځلو په وخت :**

اللهم بيّض وجهي يوم تبيض وجوه وتسود وجوه.

⇦ **د ښي لاس د وينځلو په وخت :**

اللهم أعطني كتابي بيميني و حاسبني حساباً يسيراً .

⇦ **د چپ لاس د وينځلو په وخت :**

اللهم لا تعطيني كتابي بشمالي ولا من وراء ظهري .

⇦ **د سر د مسح په وخت :**

اللهم أظلني تحت ظل عرشك يوم لا ظل إلا ظل عرشك.

⇦ **د غوږونو د مسح په وخت:**

اللهم اجعلني من الذين يستمعون القول فيتبعون أحسنه.

⇦ **د غاړې د مسح په وخت :**

اللهم اعتق رقبتي من النار.

⇦ **د ښی پښې د وینځلو په وخت :**

اللهم ثبت قدمي على الصراط يوم تزل الاقدام .

⇦ **د ګسې (چپې) پښې د وینځلو په وخت:**

**اللهم اجعل ذنبي مغفوراً و سعي مشكوراً و تجارتي لن تبور .**

⇦ **له اوداسه وروسته سنت دي** چې مخ قبلې ته کړي او د شهادت ګوته پورته کړي او ووايي :

**أشهد أن لا إله إلا الله وحده لاشريك له، وأشهد أن محمدا عبده ورسوله، اللهم اجعلني من التوابين واجعلني من المتطهرين** او انا انزلناه في ليلة القدر سورة ووايي .

يو ځل بيا ويل غواړم چې د هر اندام سره دا ذکر شوې دعاګانې صرف يو نېک عمل دی که څوک يې نه وايي اودس نه خرابيږي .

# الــغُسُل

دا عربـي ټـکی دی معنـی يـې ده پـه ټـول ځـان اوبـه اچـول او ټـول ځـان وينـځـل پـه شريـعت کـې بـې اودسـې پـه دوه ډولـه ده يـوه وړه بـې اودسـې ده دهغـې لـپـاره اودس کـول کـافـي دي چـې تـفـصيـل يـې تـېر شـو او يـوه لـويـه بـې اودسي ده چـې دهغـې لـپـاره د غسل ضرورت وي چـې تـفـصيـل تـه يـې ستـاسـې پـام را ګـرځـوم .

غسل پـه څلـور ډولـه دی

## ۱. فـرض غسل

د جنـابـت نـه غسل، د حـيض د ختـمېدو نـه وروستـه غسل ، د نـفـاس د ختـمېدو نـه وروستـه غسل کـول فـرض دي

## ۱. واجب غسل :

مـړي تـه غسل ورکـول واجب دي ، هغـه کس چـې پـه اسلام مـشرف شي غسل کـول وربـانـدې واجب دي .

## ۲. سنـت غسل :

⇦ د جمعې د ورځې غسل، د عيد مانځه ته غسل، احرام ته غسل سنت دی، د عرفات د ورځې غسل کول سنت دي .

⇦ د جمعې د ورځې غسل د مانځه لپاره دی که چېرته د سحر د مانځه نه وروسته څوک غسل وکوي او د جمعې تر مانځه پورې دده اودس پاتې نشو بيا يې د جُمعې د مانځه لپاره اودس وکولو او يا يې د جُمعې د مانځه نه وروسته غسل وکولو نو ده سنت په ځای نه کړل .

⇦ که عيد د جمعې په ورځ راغلو او په سحر وختي کې يې جماع هم وکوله او بيا يې يو غسل وکولو د ټولو لپاره کافي کيږي که د جُمعې تر مانځه پورې يې وساتلی شو .

## ۳. مستحب غسل :

⇦ مړي ته د غسل ورکولو نه وروسته غسل کول مستحب دي ، د ځان د پاکولو لپاره غسل کول مستحب دي ، همدارنګه که کافر پداسې حالت کې مسلمان شي چې تر اسلام يې لږ وړاندې غسل کړی وو او غسل يې په هغه طريقه کړی وو چې په کومه طريقه مسلمانان د جنابت د پورته کولو لپاره غسل کوي نو بيا مستحب دی چې اوس بل غسل وکوي ، مسجد حرام ته د ننوتلو نه وړاندې غسل کول مستحب دي ، د حاجيانو لپاره

په مزدلفه د درېدلو لپاره غسل کول مستحب دي ، مدينې منورې ته د ننوتلو لپاره غسل کول مستحب دي .

## ٤. مباح غسل :

په ګرمي کې د ځان د يخولو لپاره ځان وينځل مباح غسل دی همدارنګه د تفريح په نيت په اوبو کې ځان اچول مباح غسل دی .

# د غسل موجبات

غسل چې په کومو شيانو واجب کيږي په لاندې ډول دي :

## ١. مني وتل

د انسان نه د مني په وتلو غسل واجبيږي تعريف يې د اوداسه په برخه کې تېر شوی دی ددې وتل که په هره وجه سره وي که په ويښه سره وي يا خوب کې او په خوب کې که انسان وربانديې پوه شي او که نشي پوه غسل واجبيږي .

⇦ که انسان را ويښ شو په جامه کې يې لوندوالی وليدو او احتلام (خوب ليدل) ورته ياد شو نو غسل وربانديې واجب دی .

⇦ كه خوب ورته ياد نه وو لكن بيا يې هم يقين شو چې مني دي نو غسل وربانديې واجب دی اوكه يې د مني او مذي په مينځ كې شك وو بيا نه دی واجب .

⇦ كه د خوب نه وروسته چا لوند والی وليدو او ده ته هېڅ ډول خوب نه وو ور په ياد نو كه د ويده كېدو نه وړانديې يې ذكر منتشر وو نو دا بيا مذي دي او كه هغه ساكن وو نو بيا مني دي غسل وربانديې واجب كيږي .

⇦ كه چاته احتلام (خوب ليدل) ياد وو او لذة هم ورته ياد وو لكن لوندوالی او نوري نښې يې په جامو كې ونه ليدې نو غسل وربانديې نشته .

⇦ كه په همدې پورتني صورت كې يې اودس وكولو او بيا وروسته يې وليدل چې مني را ووتل نو غسل وربانديې واجب دی .

⇦ او كه د مني د وتلو او پاڅېدلو په مينځ كې يې مونځ كړی وو د مانځه را ګرځول وربانديې نشته .

⇦ كه چا غسل وكولو او د غسل نه وروسته د منيو څه پاتې برخه را ووتله نو د امام ابو حنيفه رحمه الله په مذهب وربانديې بيا غسل واجب شو او كه د دوهم ځل مني وتلو نه وړانديې يې

مونځ کړی وو هغه مونځ شوی دی را ګرځول یې ضروري نه دي .

⇦ ددې لپاره چې دوهم ځل غسل واجب نشي نو د غسل نه وړاندې بولې کول ښه خبره ده .

⇦ که څوک نشه شول چې را په هوش کې شول لوندوالی یې ولیدو غسل ورباندې نه لازمیږي .

## ۲. د ذکر ننوتل

⇦ کله چې حشفه (د ذکر سر) په قُبل او دبر کې ننوزي غسل واجبیږي که انزال شوی وي او کنه او غسل په لاندې باندې دواړو کسانو واجب دی .

⇦ که د چا حشفه (د ذکر سر) قطع وي نو د هغه په اندازه چې نور ننوزي نو غسل پرې واجبیږي .

⇦ که د انسان نه بیغیر د نورو حیواناتو سره کیږي نو ترڅو چې انزال نه وي شوی غسل نه واجبیږي.

⇦ که ماشوم تر بلوغ وړاندې د مثال په توګه د نهو یا لسو کلونو په عمر کې جماع وکوي په ښځه غسل واجب دی په هلک نه واجبیږي لکن ده ته به ویل کیږي چې غسل وکوي د عادت کولو لپاره همدارنګه که خاوند مشر وي او مېرمن لا

بلوغ ته نه وي رسېدلې خاوند به غسل خامخا کوي او په مېرمن غسل نشته لکن امر به ورته کیږي چې غسل وکوي لکه د مانځه امر چې کشر ته کیږي او وربانديې واجب شوی نه وي .

## ۳. حیض او نفاس

⇦ کله چې زنانه میاشتنۍ بیماري پای ته ورسیږي نو غسل کول وربندې واجب شي .

⇦ که هغې صرف احساس وکولو چې دا بېماره ده او وینه ترې نه وه وتلې نو بیا غسل وربانديې نشته او دا يې بیماري هم نه ده .

⇦ کله چې ماشوم پیدا شي نو د هغه سره یا په هغه پسې راتلونکې وینې ته نفاس وایي دا هم چې کله پای ته ورسیږي نو غسل واجب شي مسئلو تفصیل به ئې په خپل ځای کې راشي .

⇦ په چا باندې چې غسل واجب شي او هغه يې فوراً ونه کوي تر مانځه پورې يې وروسته کړي ګناه نشته .

⇦ که جنب خوراک څښاک کوي یا ویده کیږي ورته روا دي لکن ښه خبره ده چې که غسل اوس فوراً نه کوي نو اودس د وکوي .

⇦ که څوک په جومات کې ویده وو غسل وربانديې واجب شو چې څنګه را ویښ شي چې کیني نو تیمم

به وکوي او بیا به پاځیږي غسل به وکوي نو د غسل په ځای ددې لپاره وخت لپاره تیمم کول مستحب دي او که د څه عذر له امله د ډېر وخت لپاره په جومات کې پاتې کېدل ضروري وو دمثال په توګه د شپې د جومات نه بهر وتل خطرناک وو نو بیا دا تیمم واجب دی (در مختار)

⇦ د جنابت په حالت کې نوکان او یا له ځان څخه نور شیان پرې کول مکروه تنزیهي دي ښه خبره داده چې د غسل نه وروسته دا هر شی پرې کړي نو د هغوی به هم غسل وشي بیا به پرې شي (عالمګیري)

⇦ که له چا سره داسې شی وي چې قراني آیتونه پکې لیکلي وي د جنابت یا حیض و غیره په وخت کې به هغه له ځان څخه لري کړي او که هغه شیان په څرمن ، رخت یا بل داسې شي کې بند کړل شوي وي نو بیا یې ساتل خیردی (الشامي)

⇦ په چا چې غسل واجب شوی وي په هغه حالت کې انسان ته نه دي روا چې روان تلاوت وکوي که د تبرک لپاره بسم الله وایي خیر دی او که یو یو ټکی قران کریم وایي نو هم خیر دی کلمې درود او نور اذکار ویلی شي (عالمګیري / البحر الرائق)

⇦ په چا باندې چې غسل واجب شوی وي په هغه حالت کې دې قران کریم په خپله لمن او خپله جامه هم نه نیسي بلکه که یې اخستل غواړي نو په یوه داسې جامه یې دې را ونیسي چې دده له جامو څخه نه وي لکه اضافي رخت یا اضافي دستمال او داسې نور .

⇦ که قران کریم پخپله په کومه جامه کې یا دستمال کې نغښتلی وي نو هغه کس چې غسل ورباندې واجب شوی وي اخستلی یې شي .



# د غسل فرضونه

په غسل کې درې شيان فرض دي چې هر يو پاتې شي غسل نه کيږي .

## ١. په خوله اوبه تېرول

که غسل کونکي په خوله باندې د اوبو تېرولو په ځای اوبه و څښلې پداسې ډول چې د خولې هرې برخې ته اوبه ورسېدې نو غسل يې شوی دی .

که د چا په غاښ کې سوری وي او په هغه کې څه خوراک بند وي بيا يې هم غسل شوی دی .

په پورتني صورت کې ښه خبره ده چې د غاښونو څخه خوراکونه د غسل کولو په وخت لرې کړي او بيا په خوله اوبه تيرې کړي ترڅو هغه ژورو ځايونو ته هم په يقين سره اوبه ور ورسيږي چې په غاښونو کې دي .

## ٢. په پوزه اوبه تېرول .

⇦ که په پوزه کې يې لوند خيرى بند وي نو غسل ورسره کيږي .

⇦ که په پوزه کې داسې خيرى وي چې هغه وچ وي او د پوزې پورتنۍ برخې ته اوبه نه ورپرېږدي نو غسل ورسره نه کيږي (عالمګيري)

## ۳. په ټول ځان اوبه اچول .

⇦ په نوکانو کې که خيرى وي يا خټه وي نو غسل ورسره کيږي .

⇦ که په نوکانو کې اوړه وي او يا بل داسې شى وي چې د نوکانو بېخ ته اوبه نه ور پرېږدي نو غسل ورسره نه کيږي .

⇦ که په بدن يې بل داسې څه سريښ شوي وو چې پوستکي ته يې اوبه نه ور پرېښودلې نو غسل يې نه کيږي .

⇦ د زنانه که د وېښتانو بيخونو ته اوبه ور رسيږي نو د کمڅيو خلاصول ورباندې نشته .

⇦ که نارينه وېښتان دومره لوى کړي چې کمڅۍ ترې جوړې شي نو په هغه يې خلاصول لازم او هر وېښته ته اوبه ور رسول ضروري دي .

⇦ که زنانه په سر داسې څه لګولي وو چې د وېښتانو بېخ ته ترې اوبه نه رسېدلې نو لرې کول يې ورباندې ضروري دي ترڅو د وېښتانو بېخ ته اوبه ور ورسيږي .

- که په ګوته کې ګوتمه داسې تنګه وي چې ترې لاندې اوبه نه رسیږي په غسل او اوداسه دواړو کې یې ښورول ضروري دي .

- د زنانه غوږونه چې سوروي وي دهغه سورویو مینځ ته اوبه ور رسول ضروري دي که په خپله اوبه ور رسیږي نو ښه خبره ده او کنه نو لښتۍ دې پکې وښوروي او یا د بل شي په واسطه اوبه ور ورسوي او که چېرته اوبه ور رسیږي نو بیا نور تکلیف ته ضرورت نشته (البحر الرائق)

- د نو (نوم) غوټۍ ته اوبه رسول ضروري دي د احتیاط لپاره ښه خبره ده چې د وړوکې ګوتې په سر باندې یقیني کړي چې په هغې کې د ننه ځای وچ نه وي پاتې شوی (محیط السرخسي)



# د غسل سنتونه

په غسل کې لس شیان سنت دي .

١. په بسم الله سره شروع کول (د عورت تر لوڅولو وړاندې)

٢. نیت کول

٣. تر مړوندونو پورې لاسونه وینځل .

٤. که په بدن باندې نجاست وي اول هغه له بدن څخه پاکول .

٥. استنجاء کول اګر که پاک هم وي .

٦. د مانځه د اوداسه په څیر مکمل اودس کول صرف که په داسې ځای کې یې غسل کولو چې هلته دده د غسل اوبه سره ټولېدلې نو د پښو وینځل به وروسته کړي .

٧. په ټول ځان باندې درې ځله اوبه اچول په اوبو کې غوټه وهل هم کفایت کوي .

٨. که په ځان اوبه اچوي نو اول په سر اچول .

٩. په اندامونو کې له ښي طرف نه شروع کول .

١٠. په اول ځل کې له اوبو سره په بدن باندې لاس هم تېرول (بدن موښل) .

# د غسل ادبونه

⇦ بسم الله ویل :

دجامو د ویستلو په وخت کې به انسان بسم الله ووایي او بسم الله د تبرك لپاره جنب او حائضه هم ویلی شي حضرت انس ❽ فرمایي : رسول الله ﷺ فرمایل : کله چې انسان خپلې جامې ویستل وغواړي د پیریانو د سترګو او د انسان دعورت په مابین کې پرده داده چې دا انسان ووایي بسم الله الذي لا اله الا هو . رواه ابن سني

⇦ عورت پټ ساتل :

غسل کونکی باید دخپل عورت ساتنه وکوي او نده روا چې انسان په داسې ځای کې غسل وکوي چې دده عورت خلکو ته ښکاره کیږي او دغسل کولو په وخت کې ترڅو چې ضرورت نه وي باید عورت ښکاره نه کړي او د الله تعالی او دهغه د ملا ئکو څخه حیاء وکوي .

⇦ حمام ته هم په پرده کې ننوتل :

غسل کونکی چې حمام ته ننوزي باید په پرده کې وي او که یې جامې بهر (بېرون) ویستل غوښتل باید په ځان باندې داسې یو شی تاو کړي چې دده عورت پرې پټ شي ، چې کله حمام ته ننوزي هلته

به له ځان څخه پرده لرې کړي .

⇦ خپل عورت ته او د بل چا عورت ته نه کتل :

غسل کونکی به کوښښ کوي چې خپل عورت ته هم بغیر له ضرورت څخه ونه ګوري او که په داسې ځای کې غسل کوي چې هلته نور خلك هم غسل کوي باید د بل چا عورت ته سترګې ونه غړوي الله تعالی فرمايي : سورة النور آية ۳۰

قُل لِّلْمُؤمِنِينَ يَغُضُّوا مِنْ أَبْصَارِهِمْ وَيَحْفَظُوا فُرُوجَهُمْ ذَلِكَ أَزْكَى لَهُمْ إِنَّ اللَّهَ خَبِيرٌ بِمَا يَصْنَعُونَ.

ترجمه : او ووایه مومنانو ته چې ټيټې دې کړي سترګې خپلې له نا روا څخه او و دې ساتي دوی فرجونه (شرمګاه) خپل له ناروا څخه دا ددوی لپاره ډېره پاکیزه ده بېشکه الله ښه خبر دی په هغه کارونو چې دوی يې کوي .

حضرت علی ❽ فرمايي : څوك چې دچا عورت ته ګوري پدې دواړو باندې د الله لعنت وي ( يو د کتلو او بل د عورت د لوڅولو له امله مجرم دي چې هغه ولې دده لپاره عورت لوڅ کړی دی)

⇦ تر آخري حده پورې ځان پټ ساتل :

غسل کونکی به تر آخره حده پورې کوښښ کوي چې په داسې ځای کې غسل وکوي چې دی څوك نه وګوري او نه به دغسل په دوران کې له چا څخه مرسته

غواړي حضرت عمر ❽ به غسل په ډېره پټه طريقه سره كولو او څوك به يې هم نه پرېښودل چې ده ته دغسل په دوران كي وګوري او بيا به يې ويل : دا كار د دين څخه دى .

⇦ دغسل په دوران كې خبرې نه كول:

كله چې انسان غسل كوي بايد خاموش وي نه له چا سره خبرې وكوي او نه چاته سلام واچوي او نه له چا څخه سلام واخلي ، نه تلاوت وكوي اونه نور څه صرف د غسل متعلق كه كومه دعا وايي ددعا په نيت نو خير دى .

⇦ په حمام كې خوراك او څښاك نه كول :

غسل كونكى چې څنګه حمام ته ننوزي دخپل حاجت په پوره كولو ( غسل كولو) كې كوښښ وكوي او هلته نور هېڅ ونه كوي او نه هلته بې ضرورته وخت تېر كړي .

⇦ په خوراك پسې متصل غسل نه كول:

انسان به كوښښ كوي چې په خوراك پسې متصل غسل ونه كوي ځكه دا هاضمې ته تاوان كوي همدارنګه د غسل په دوران كې يخې اوبه څښل هم هاضمه خرابوي .

⇦ دجامود ويستلو په وخت عبرت اخستل :

انسان چې كله جامې وباسي بايد يوه لحظه داسې فكر هم وكوي چې يو وخت به داسې هم راشي چې بل

ځوك به دده ځخه جامې وباسي او ده ته به غسل ورکوي او دانازك بدن به يووخت خاورې وي .

⇦ په اوبو كې اسراف نه كول :

ترڅو پورې يې چې ضرورت نه وي نو اوبه به نه تويوي لکه د اوداسه له ادبونو ځخه چې هم دي که ځوك په روان نهر باندې هم وي بيا هم ډېرې اوبه استعمالول اسراف وي .

⇦ په غسل كې كوښښ كول :

غسل کونکی بايد دا ځان ته يقيني کړي چې دده د بدن ټولو برخو ته اوبه په پوره توگه رسېدلي دی په خاصه توگه که غسل فرض شوی وي بيا خو که د يوه ويښته په اندازه ځای وچ پاتې شي هم غسل نه کيږي او انسان لا هماغسې په بې اودسۍ کې پاتې کيږي .

⇦ په فرض غسل باندې بيړه كول:

په انسان باندې چې كله غسل فرض شي بايد په كولو كې يې تر آخري حده پورې بيړه وكوي ځكه انسان ته په هره لحظه كې دا نده معلومه چې لدې وروسته به څه كيږي .

## د غسل مكروهات

هغه شيان چې په اوداسه کې مکروه وو هغه دلته هم مکروه دي او د هغې نه علاوه دلته يو څه نور شيان هم دي .

⇦ بې ضرورته په داسې ځای کې غسل کول چې خلکو ته ښکاره کيږي که چېرته غسل واجب شو او داسې ځای نه وو چې انسان پکې غسل وکوي نو د فرض غسل په صورت کې د سړی د نورو سړيو په مخ کې خپلې جامې وباسي او غسل دې وکوي او په نورو خلکو لازمه ده چې ده ته ونه ګوري همدارنګه ښځه به د نورو ښځو په مخ کې غسل وکوي او په نورو ښځو لازم دي چې دېته ونه ګوري او که چېرته د سړي لپاره داسې ځای وو که هغه جامې وباسي ښځو ته ښکاره کيږي او يا که ښځه جامې وباسي نو سړيو ته ښکاره کيږي بيا د غسل نه کوي (رد المحتار) .

⇦ په غسل خانه کې چې د بولو ځای نه وي هلته بولې کول مکروه دي .

⇦ د جامو نه بغير قبلې ته مخ کول مکروه دي .

# تيمم

کله چې انسان اوبه د مانځه په وخت کې پيدا نشي کړلی او يا د اوبو له استعمال څخه معذور شي نو اسلام بيا هغه ته اجازه ورکوي چې تيمم

دې وکوي تيمم په لغت کې قصد ته وايي او په اصطلاح کې په پاکه خاوره سره مخ او څنګلې مسح کول دي او دا اسانتيا الله ① صرف دې امت ته ورکړېده الله ① د تيمم په اړه فرمايي :

سورة النساء آية ٤٣

وَإِن كُنتُم مَّرۡضَىٰٓ أَوۡ عَلَىٰ سَفَرٍ أَوۡ جَآءَ أَحَدٞ مِّنكُم مِّنَ ٱلۡغَآئِطِ أَوۡ لَٰمَسۡتُمُ ٱلنِّسَآءَ فَلَمۡ تَجِدُواْ مَآءٗ فَتَيَمَّمُواْ صَعِيدٗا طَيِّبٗا فَٱمۡسَحُواْ بِوُجُوهِكُمۡ وَأَيۡدِيكُمۡۗ إِنَّ ٱللَّهَ كَانَ عَفُوًّا غَفُورًا ﴿٤٣﴾

ترجمه : او که تاسې بيماران وی او يا په سفر وی پتاسې کې يو قضاء حاجت ته لاړو او يا تاسې خپلو ښځو ته نېږدې شوئ (تاسې ته د اوداسه يا د غسل ضرورت شو) نو بيا قصد وکوي پاکې خاورې ته په هغې باندې خپل مخونه او لاسونه مسح کړئ الله ① عفو کونکی او بښونکی دی .

په لاندې صورتونو او حالتونو کې تيميم کول کيږي .

١. د اوبو لرې والی

⇦ کله چې اوبه لږ تر لږه یو میل لرې وي میل د فرسخ درېمه برخه او په شرعي ګزونو څلور زره ګزه لرې فاصله ده .

⇦ که په اباده کې وي نو ترڅو یې چې د اوبو د پیدا کولو پوره کوښښ نه وي کړی نو تیمم نه دی روا او کله یې چې د اوبو لټون وکولو او د لټون نه وروسته هم په لاس ورنغلې نو بیا د تیمم وکوي (السراج الوهاج)

⇦ که د کوهي په غاړه ولاړ وي ډولچه نه وي چې اوبه پکې را وباسي او یا ورسره رسۍ نه وي نو بیا هم تیمم کولی شي سره ددې چې اوبو ته ډېر نېږدې دی لکن بیا هم دده په لاس نه ورځي .

⇦ که دده طمعه وه چې کېدای شي اوبه پیدا شي نو د وخت تر آخره پورې ورته انتظار کول مستحب دي لکن چې کله دی پوه شو چې اوس مونځ قضاء کیږي نو بیا د تیمم ووهي او مونځ د وکوي .

⇦ که په بار کې ورسره اوبه وې لکن له ده څخه هېرې شوې وې تیمم یې وکولو او مونځ یې وکولو بیا ور په زړه شوې د امام ابي حنیفة رحمه الله او امام محمد رحمه الله په مذهب یې

مونځ یې شوی را ګرځول یې ضروري نه دي (محیط السرخسي)

⇦ او که دی نه وو خبر دا اوبه بل چا ایښې وې بیا خو یې بالاتفاق مونځ صحیح دی را ګرځول یې ورباندې نشته .

⇦ که په یوه لوښي کې اوبه وې دده ګمان وو چې هغه ختمې شوې دي ده تیمم وکولو بیا یې مونځ وکولو د مانځه نه وروسته ښکاره شوه چې هلته اوبه وې نو اودس به کوي او مونځ به را ګرځوي .

## ۲. بیماري

⇦ که څوک داسې بیمار وي چې د اوبو له استعمال نه د بیماري د زیاتېدلو او یا د زر نه جوړېدو خطر وي نو هغه هم تیمم کولی شي .

⇦ دا به څنګه معلومېږي چې دې بیمار ته اوبه تاوان کوي؟ یا له تجربې نه ، یا له نښو نه (چې اوبه ورسره ولګیږي دی یې په بد اثر پوهیږي) او یا د ماهر ډاکټر او طبیب له وینا څخه .

⇦ همدارنګه هغه کس ته تیمم روا دی چې د بیماري له امله خپله اودس نشي کولی او هلته څوک نه وي چې ده ته اودس ور وکوي .

۳. وېره (ډارېدل)

⇦ کله چې د اوبو سره دښمن یا کوم خطرناک ځناور وي چې انسان یې له ویرې اوبو ته نشي ورتلی نو بیا هم تیمم کولی شي .

⇦ که انسان په ځان ډارېږي او یا په خپل مال ډارېږي په دواړو صورتونو کې تیمم روا دی .

⇦ که اوبه د کوم فاسق سړي په ملکیت کې وي اوزنانه ترېنه په خپل ځان ډارېده بیا د له هغه ځخه اوبه نه غواړي او تیمم دې ووهي .

٤. د اوبو کمښت

⇦ که له چا سره په سفر کې اوبه لږ وي او ددې وېره وي که پدې اوبو اودس وکول شي نو د څښلو اوبه ختمېږي نو بیا هم تیمم روا دی او اوبه دې څښلو ته وساتي .

⇦ همدارنګه که څوک ډارېدل که زه پدې اوبو اودس وکوم سپرلی مې تږې کیږي نو هم تیمم کولی شي .

⇦ که د انسان غسل ته ضرورت وي یا یې اودس نه وي او جامه یې هم نجسه وي اوبه ورسره دومره وي چې د یو لپاره بس کیږي نو جامه به ور باندې ووینځي او د غسل په ځای به تیمم ووهي لکن وروسته ددې چې اوبه یې د جامې په

وینځلو ختمې کړي او که د جامې د وینځلو نه یې وړاندې تیمم کول نه صحیح کیږي ځکه پدې وخت کې اوبه له ده سره شته او دی یې په استعمال هم قادر دی .

⇦ همدارنګه که ددې نه ډار وو چې که په موجوده اوبو تیمم وشي نو بیا د اوړو د خیشته کولو لپاره اوبه نه پاتې کیږي نو هم تیمم روا دی .

## ٥. د اختر یا جنازې مونځ تېرېدل

⇦ که په اوداسه انسان مصروف کیږي نو د اختر مونځ یا جنازې مونځ ورځخه تېریږي نو زر د تیمم وکوي ځکه که دا تېر شي نو بیا ددې په عوض کې بل مونځ نشته او که په عامو وختونو کې جمع تیریږي نو خیر دی د هغه وخت مونځ خو یوازې کولی شي .

⇦ د جنازې د مانځه لپاره هغه کس تیمم کولی شي چې د جنازې ولي نه وي او که دی په اوداسه مصروف شي دده لپاره څوک جنازه نه ځنډوي .

⇦ که دوه جنازې سر په بله پسې وې نو په یو تیمم دواړه کولی شي او که د دواړو په مینځ کې دومره وخت وو چې ده پکې اودس کولی شوای لکن ده ونه کولو نو دوهمه جنازه چې حاضره شوه نو تیمم به بیا له سره کوي .

# د تیمم شروط او ارکان

## ۱. نیت

⇦ کله چې تیمم وهل کیږي نو د داسې کوم شي نیت ورسره ضروري دی چې هغې ته په عادي حالت کې د اوداسه ضرورت وي لکه د قران کریم مس کول او یا د مانځه کول او داسې نور ځکه خاوره په اصل کې یو شی خیرن کوي او دا چې خاوره پاکول وکولی شي دا صرف په نیت سره ممکن دي .

⇦ په تیمم کولو کې په نیت کې د غسل او یا اوداسه لپاره د تیمم کولو د تعین ضرورت نشته .

⇦ که چا د جنازې د مانځه یا د تلاوت د سجدې لپاره تیمم وکولو بیا د فرضي مانځه وخت وربانديږ راغلو دا هم وربانديږ کولی شي .

⇦ که چا ددې لپاره تیمم وکولو چې وربانديږ تلاوت وکوي ، یا یې جومات ته ننوتل غوښتل او دهغې لپاره یې تیمم وکولو ، یا یې د قران کریم د مس کولو لپاره تیمم وکولو پدې تیمم سره به بیا مونځ نه کوي (فتاوی قاضي خان)

## ۲. دوه ځله په زمکه لاس وهل .

⇦ اول ځل به لاس په زمکه یا په بل هغه شي چې دی وربانديټ تیمم کوي ووهي او په هغې سره به مخ مسح کړي دوهم ځل به یې ووهي په هغې سره به خپل لاسونه تر څنګلو پورې مسح کړي .

⇦ که مخ او څنګلې یې دواړه په یو ځل سره مسح کړې نه صحیح کیږي (فتاوای قاضي خان)

⇦ که د چا تیمم ته ضرورت وو نو ټول ځان یې د تیمم په نیت په خاورو کې و رغړولو نو که مخ او لاسونو ته یې خاورې ورسېدې نو تیمم یې کیږي او کنه نو نه کیږي .

## ۳. استیعاب (په خاوره باندې وهل شوی لاس ټول مخ او ټول لاس ته رسول)

⇦ کله چې په تیمم کې مخ او لاسونه مسح کوي کوښښ به کوي چې د مخ او لاسونو هرې برخې ته هغه لاس ور ورسیږي چې دی وربانديې مسح کوي او دا استیعاب واجب دی حتی چې په زیړمو (هغه پردې چې سترګې پټوي) به هم مسح کوي (محیط السرخسي)

⇦ که خاوره داسې ډېره نه وه چې د ګوتو مینځونو ته ور ننوزي نو د ګوتو خلال هم واجب دی .

## ٤. پاکه خاوره .

⇦ تیمم به په پاکه خاوره یا په بل داسې شي باندې کوي چې خاوره ورته رسېدلې وي .

⇦ که چېرته خاوره او ګرد وربانذې نه وي نو په لرګي یا په واښو او نورو دېته ورته شیانو باندې تیمم نه کیږي .

⇦ په وسپنه، میسو سرو او سپینو زرو، شیشه باندې چې ترڅو ګرد نه وي پروت تیمم وربانذې نه کیږي .

⇦ که په باد کې ګرد را پورته شو او چا خپل لاسونه تر څنګلو ورته لوڅ کړل په مخ او لاسونو باندې ئې ګرد ولګېدو او ده بیا د تیمم په نیت لاس وربانذې را کش کړو نو تیمم یې صحیح دی .

## ٥. د اوبو د استعمال وس نه لرل .

⇦ د تیمم په وخت کې به دا یقیني وي چې اودس نشي کېدلی که وجه یې د اوبو نشت والی ، لرې والی او یا بل هر عذر وي چې د تیمم د بحث په سر کې تېر شول لکن ددې یقین وي چې تیمم کونکی د اوبو په استعمال قادر نه دی .

٦. طلب او کوښښ

⇦ څوک چې تیمم کوي که دهغه په ګمان پدې ساحه کې اوبه پیدا کېدلی شي په ده یې لټون واجب دی او که دده یقین وو چې دلته اوبه نه پیدا کیږي بیا لټون وربانديې واجب نه دی .

⇦ که تیمم کونکي ته بل څوک ووایي چې ما کوښښ وکولو اوبه دلته نه پیدا کیږي نو دا کفایت کوي په هر کس باندې بېل بېل لټون کول واجب نه دي .

⇦ که چاته اوبه په نېږدې ځای کې واقع وي لکن ده پیدا نه کړي تیمم یې روا دی .

⇦ که اوبه په نېږدې ځای کې وي او هلته خلک هم وي دی به له هغوی څخه د اوبو په اړه پوښتنه کوي که یې پوښتنه ونه کوله تیمم یې وکولو او مونځ یې وکولو بیا وروسته ورته چا وویل چې دلته نېږدې اوبه شته نو مونځ یې نه دی شوی .

⇦ که ده پوښتنه وکوله ده ته وویل شول چې دلته اوبه نشته نو ده تیمم وکولو بیا ده ته وویل شول چې دلته نېږدې اوبه دي نو دده مونځ شوی دی را ګرځول یې په ده نشته .

⇦ که د ملګري سره یې په سفر کې اوبه وي دده یقین وي که یې تري وغواړم رابه یې کړي نو دغوښتلو نه وړاندې تیمم نه کیږي .

- که يې يقين وي چې نه يې راکوي نو بغير د غوښتلو هم تيمم کولی شي .

- که يې پدې کې شک وو چې زما ملګرى به ماته اوبه راکړي او کنه او د همدې شک په حالت کې يې په تيمم سره مونځ وکولو د مانځه نه وروسته يې ورته اوبه ورکړې نو مونځ د را وګرځوي .

- که ملګري يې د مانځه نه وړاندې ورځخه اوبه منع کړې ده چې مونځ وکولو هغه ورته ورکړې نو بيا ورباندې د مانځه راګرځول واجب نه دي .

- که ملګري يې اوبه وربانديې په مناسب قېمت خرڅولې او دده سره اضافي پيسې وي نو تيمم يې نه دى روا اوبه د واخلي اودس دې وربانديې وکوي او که هغه په مناسب قېمت په ده نه خرڅولې او د اصلي مناسب قېمت دوه چنده يې ورځخه غوښتلې نو بيا يې دې نه ترې اخلي تيمم ورته روا دى .

- که مسافر تيمم وکولو په مانځه ودرېدو يو غير مسلم ورته وويل : ها اوبه واخله نو خپل مونځ به ورته نه ماتوي کېداى شي هغه په ده پورې ټوکې کوي لکن چې کله يې مونځ ختم کړو بيا دې ورځخه وغواړي که يې ورکړې اودس به وکوي مونځ به بيا وکوي او که يې ور نه کړې

مونځ یې شوی دی (فتاوی قاضي خان / عالمګیري)

## ۷. د خاورې پاکوالی

⇦ هغه زمکه یا هغه خاوره چې د تیمم اراده ورته شوې وې باید بالکل پاکه وي او داسې زمکه نه وي چې نجاست وربانديې لګېدلی وي .

## ۸. د ځرمن پاکوالی

⇦ د تیمم د کولو په وخت کې به په بدن داسې کوم شی نه وي لګېدلې چې مسح کونکی لاس په بدن نه لګیږي .

# د تیمم ماتونکي

⇦ ټول هغه شیان چې د اوداسه په بحث کې تېر شول چې اودس ماتوي تیمم ماتوي او په اودس باندې قدرت پیدا کول هم تیمم ماتوي د هر عذر له امله یې چې تیمم کړی وو کله چې هغه عذر له مینځه لاړو نو اوس تیمم مات دی اودس به کوي .

- که انسان په کومه سپرلۍ وي په اس ، اوښ یا موټر کې وي او د اوبو په خوا کې تېر شی او دی ویده وي نو تیمم یې نه ماتیږي .

- که په داسې حالت کې له اوبو نه تېر شو چې د ډار له امله نشوای ورته ښکته کېدلی بیا یې هم تیمم ندی مات .

- که چا تیمم کړی وو بیا د اوبو په خوا کې تېر شو او د ه ته په یاد نه وه چې ما اودس نه دی کړی بلکه تیمم مې کړی دی دده هم تیمم مات شوی دی چې بیا مونځ کول غواړي که اوبه نه وي تیمم به ورته تازه کوي .

# د تیمم سنتونه

۱. په اول کې بسم الله ویل لکه په اوداسه کې چې ویل سنت وو .

۲. د هغه ترتیب مطابق کول لکه د رسول الله ﷺ نه چې نقل شوي دي اول په مخ مسح کول او بیا په لاسونو کې اول په ښي بیا په چپ .

۳. د مخ او لاسونو په مسح کې زیات وخت نه تېرول یو په بل پسې زر کول .

٤. په خاوره باندې د لاس کېښودلو نه وروسته یو ځل لاسونو ته کتل .

٥. لاسونه بېرته چپه کول.

٦. د لاسونو ځنډل که کوم شی وربانديې نښتي وي چې ترې وغورځیږي.

۷. په زمکه باندې د وهلو په وخت کې ګوتې سره خلاصې نیول .

# د تیمم طریقه

- لکه مخکې چې تېر شول په تیمم کې نیت شرط دی تیمم به وکوي چې زه تیمم کوم د مانځه لپاره یا د تلاوت لپاره یا د جنازې لپاره او یا د بې اودسي د لرې کولو لپاره .
- دواړه لاسونه به پداسې حالت کې په خاوره کیږدي چې ګوتې به یې یو له بل نه لرې نیولې وي .
- دواړه لاسونه به وګوري او بیا به یې ورو څنډ وهي .
- په دواړو لاسونو به مخ مسح کړي یقیني به کړي چې په اوداسه کې د مخ کومه برخه وینځل کیږي هغه ټولې ساحې ته د مسح لاس ور ورسېدو.
- بیا به لاس په خاوره کیږدي او وبه یې ګوري بیا به یې څنډ وهي او په چپ لاس به ښی لاس تر څنګلې او په ښي لاس باندې چپ لاس تر څنګل پورې مسح کړي او د ګوتو خلال به هم وکوي که یې مینځونو ته د خاورې ګرد نه وو ورغلی .

نکته : د اوداسه پرځای تیمم کول او د غسل پر ځای تیمم کول دواړه یو شان دي .

⇦ خاوره نه استعمالیږي دوه کسان له یو ځای نه تیمم وهلی شي .

⇦ که له یو ځای نه متعدد ځله تیمم وهل کیږي نو هم روا ده .

⇦ چې تیمم ترڅو مات شوی نه وي په تازه کولو کې یې ثواب نشته لکه یوځل چې د انسان اودس وي بیا یې تازه کړي په هغې کې ثواب دی .

# په موزو او بوټانو باندې مسح

په موزو باندې مسح کول هم د مسافر او مقیم لپاره یو سهولت دی ددې سهولت له مخې مسافر کولی شي تر دریو شپو او دریو ورځو پورې او مقیم تر یوې شپې او یوې ورځې پورې د پښو وینځلو څخه خلاص شي احکام او شرطونه یې را روان دي .

## د مسح طریقه :

د مسح طریقه داده چې دواړه لاسونه به لانده کړي تر کوم ځای لاندې چې د پښو ګوتې وي هلته به یې په موزه د ښي لاس دری ګوتې په ښۍ پښه او د چپ لاس دری ګوتې په چپه پښه کیږدي او پورته پنډۍ خواته به یې تر ښنګري نه تر پورته ساحې پورې کش کړي .

دا يې سنت طريقه ده او که يې د پنډۍ له خوا نه لاس کېښودل ښکته د پښو د ګوتو خواته يې را کش کړل بيا هم صحيح ده لکن د سنتو خلاف ده .

په موزو باندې د مسح لپاره څو خبرې ضروري دي .

## ۱. د موزو يا بوټانو څرنګوالی .

⇦ موزې بايد پداسې ډول وي چې ښنګري يې پټ کړي وي او تلل پکې کېدلی شي .

⇦ په هغه جرابو باندې هم مسح کېدلی شي چې څرمن ورباندې خېږول شوې وي .

⇦ په هغه جرابو باندې هم مسح کېدلی شي چې لکه د بوټانو داسې تلی ورته لګول شوی وي .

⇦ همدارنګه په هغه جرابو هم مسح کېدلی شي چې سختې وي د سختو مطلب دادی چې بغير د تړلو په پښه پورې سريښ وي او پښه ورڅخه نه ښکاره کيږي (عالمګيري)

⇦ که مسی د څرمن يا دپته ورته شي نه وي نو مسح ورباندې روا ده .

⇦ که موزې د لرګي ، شيشې يا وسپنې څخه جوړې وې مسح ورباندې نه کيږي ځکه په هغې کې تلل هم نشي کېدلی .

## ٢. د مسح ځای

- مسح به د بوټ يا جرابې يا مسی په پورتني طرف کيږي .
- د مسح ځای د موزې يا جرابې صرف پاسنۍ برخه ده د لاس د دريو ګوتو په اندازه .
- مسح د موزې يا جرابې په شا طرف يا تر ښنګري نه په پورته برخه نه صيحيح کيږي .
- که چېرته يوه پښه پرې شوې وه نو په بله د يوازې مسح وکوي .

## ٣. مسح به په دريو ګوتو سره وي

- مسح بايد په دريو ګوتو سره وي که يې په دوه ګوتو مسح وکوله نه صحيح کيږي .
- که يې دری ځله يوه ګوته په مختلفو مختلفو ځايونو باندې را کش کړه چې داسې شوه لکه دری ګوتې چې وربانديې را کش شوې وي نو بيا هم صحيح ده لکن د هر ځل پورته کولو لپاره به تازه اوبه ور اخلي .
- په موزه يا بوټ باندې د ګوتو د لکيرو ښکاره کېدل ضروري نه دي لکن چې ښکاره شي نو ښه خبره ده .

⇦ د موزو په مسح کې نیت ضروري نه دی که چا مسح وکوله بل چاته یې د مسح د ورښودلو نیت وو بیا هم مسح شوې ده اګر که دده نیت د مسح کولو نه وو .

## ٤. په موزو کې به د دریو ګوتو په اندازه شلېدلی ځای نه وي .

⇦ که چېرته موزه داسې شکېدلې وي چې د پښې وړې درې ګوتې پکې ننه ایستل کېدلی شي نو بیا مسح وربانډې نه کیږي .

⇦ که په موزه کې شلېدلی ځای تر ښنګري لوړ د پنډۍ په برخه کې وي نو مسح وربانډې کیږي .

٥. د موزې کيفيت

موزې به په داسې ډول وي چې پښه به له اوبو څخه ساتي او پښې ته به اوبه نه ور پرېږدي .

٦. د مسح موده

⇦ د مسافر لپاره د مسح موده درې شپې او درې ورځې ده او د مقيم لپاره يوه شپه او يوه ورځ ده او دا موده له هغه وخت نه شروع کيږي کله چې د مسح نه وروسته د مسح کونکي اودس مات شي د مثال په ډول که چا د سحر اودس وکولو او سحر يې په موزو مسح وکوله او اودس يې په مازيګر کې مات شو نو د مسح موده له مازيګر نه شروع شوه .

⇦ که چا په موزو مسح کړې وه د مسح موده پوره شوه لکن په سخته واوره کې ئې تګ کولو ډاريدو که موزې وباسي پښې ئې د سخت يخ له امله خرابيږي نو ترڅو چې د داسې خطر احساس کوي موزې به نه وباسي د مسح موده يې د خطر تر لرې کېدلو پورې ده .

# د مسح ماتونکي شيان

۱. هر هغه شی چې اودس ماتوي نو مسح هم ماتوي کله چې بیا اودس کوي نو بیا به وربانديې مسح کوي .

۲. د یوې موزې ویستل او یا د دواړو موزو ویستل مسح ماتوي .

۳. د مسح د مودې پوره کېدل .

⇦ کله چې موزه وباسي او یا د مسح وخت پوره شي نو موزې د دواړه وباسي صرف د پښو وینځل وربانديې ضروري دي .

⇦ که د پښې اکثر برخه له موزې څخه را ووته که لږ پکې پاتې هم وه مسح ماته شوېده دا د موزې ایستل ګڼل کیږي .

# په پټۍ باندې مسح

کله چې په یو اندام کې زخم وي او د هغه وینځل هغه ته تاوان کوي او یا یې وینځل له درد نه خالي نه وي نو بیا به په هغه ساحه باندې د لوند لاس د را کش کولو سره مسح کوي او که مسح هم هغه ځای ته تاوان کولو نو بیا به هغه په کوم شي باندې وتړې بیا به دهغه شي لپاسه (د پټۍ لپاسه) مسح کوي .

⇦ که چېړته يې په پټۍ باندې مسح وکوله د مسح نه وروسته هغه پټۍ وغورځېده که ترې لاندې زخم جوړ نه وو نو اوس يې هم وينځل ضروري نه دي او که ترې لاندې زخم اوس جوړ شوی وو نو وينځل يې وربانډې لازم دي .



# ماخذونه

- المبسوط للسرخسي
- شرح الوقاية
- حاشية ابن عابدين (رد المحتار على الدر المختار)
- غمز عيون البصائر في شرح الأشباه والنظائر
- العناية شرح الهداية
- فتاوای قاضیخان
- التتارخانية
- محيط السرخسي
- الهداية
- الكتاب
- اللباب في شرح الكتاب
- حاشية طحطاوي على المراقي
- فقه العبادات (حنفي)
- الاشباه و النظائر

- مراقي الفلاح
- الفتاوى الهندية (عالمګيري)
- تحفة الملوک
- البحر الرائق شرح كنز الدقائق
- جامع الرموز
- إرشاد أهل الملة إلى اثبات الأهلة
- المحيط البرهاني في الفقه النعماني
- الجامع الصغير
- شرح رائض الفرائض
- بدائع الصنائع
- تبيين الحقائق شرح كنز الدقائق
- المبسوط
- الإنتصار والترجيح للمذهب الصحيح
- مجمع الأنهر شرح ملتقى الابحر
- النافع الكبير
- نور الايضاح
- منية المصلي

# د مؤلف چاپ شوي آثار

1. د حضرت محمد ﷺ د نبوت معجزې
پښتو
2. ږنګه ځاله
پښتو
3. آشیانه سوخته
فارسي
4. په اسلام کې د انسان حقوق
انګلیسي
5. دین یې دام دی ددنیا په لار کې ایښی
پښتو
6. فرار از کزار
فارسي
7. له کزاره تېښته
پښتو
8. زوړ دین نوی مسلمان
پښتو
9. ډم ډمکوجي او لیکوال
پښتو
10. ادیان پشت در
فارسي

11. له دروازې تر شا دېنونه
پښتو

12. د انصاف او اعتدال لاره
پښتو

13. کفري الفاظ
پښتو

14. کل بچه فارسي

15. معلومات عمومي
فارسي

16. د حج لارښود پښتو
او انګلیسي

17. محمد رسول الله ﷺ سیرت اخلاق او پېژندنه
پښتو

18. د اسلامي تاریخ له پاڼو څخه اول
پښتو

19. د اسلامي تاریخ له پاڼو څخه دوهم
پښتو

20. د اسلامي تاریخ له پاڼو څخه دریم
پښتو

21. د اسلامي تاریخ له پاڼو څخه څلرم
پښتو

22. د اسلامي تاريخ له پاڼو څخه پنځم پښتو

23. د اسلامي تاريخ له پاڼو څخه شپږم پښتو

24. د اسلامي تاريخ له پاڼو څخه اوم پښتو

25. د اسلامي تاريخ له پاڼو څخه آتم پښتو

26. د اسلامي تاريخ له پاڼو څخه نهم پښتو

27. د اسلامي تاريخ له پاڼو څخه آتم پښتو

28. د فقهي کتابونو له پاڼو څخه اول ستاسې په لاس کې